# د ګران نبی صلی اللہ علیہ وسلم

# خواږه سنتونه



شیخ العرب والعجم عارف باللہ حضرتِ اقدس

مولانا شاہ حکیم محمدّ اختر صاحب دامت برکاتہم

خانقاہِ امدادیہ اشرفیہ

# دکران نبی ﷺ خواږه سنتونه

شیخ العرب والعجم عارف باللہ حضرتِ اقدس

مولانا شاہ حکیم محمّد اختر صاحب دامت برکاتہم

خانقاہ امدادیہ اشرفیہ

گلشن اقبال بلاک نمبر ۲ کراچی

# فهرست

# باسمه سبحانه وتعالیٰ

دشیخ العرب والعجم ولئ کامل حضرت مولانا شاه حکیم محمد اخترصاحب دامت برکاتهم شخصیت دتعارف محتاج نه دی. دحضرت والا په مختلفو ژبو کی مواعظ حسنه دخاص قبولیت عنداللّٰه علامت دی .دحضرت والا په زړه کښی دغه درد دی چی داللّٰه بندګان او دحضورﷺ اُمتیان خپل حقیقی خالق او مالك وپیژنی او هغه څینی خوشحاله سی. که چاپه فرائضو، واجباتو، سنت مؤکده ؤو عمل وکړل او ګناهونه ئې پریښودل نو هغه خپل رب خوشحاله کړل او خپل رب ته ورنزدیشول. دفرائضو تکمیل په واجباتو اود واجباتو تکمیل په سنت مؤکده ؤو او دسنت مؤکده ؤو تکمیل په سنت غیر مؤکده(نوافل) سره کیږی. زیرِ نظر رساله دحضرت والا دسنتو کتاب" **پیارے نبیﷺ کی پیاری سنتیں**" پښتو ترجمه ده. حضرت والا په دې رساله کښی دقرب الی اللّٰه اوّله زینه بیان کړی ده او په دې سره دعمل کولو باندی به اللّٰه تعالیٰ دنورو مراحلو دتکمیل توفیق هم راکړی. دغه رساله ما وکتله د اصل کتاب سره سمون لری په دې کښی انشآءاللّٰه څه غلطی نشته.اللّٰه دی مترجمینو ته اجرعظیم ورکړی.

سیفُ الرحمٰن

امام مسجدِ اشرف خانقاه امدادیه اشرفیه ګلشن اقبال کراچی

# دخوب څخه دراپورته کیدو سنتونه

(۱) دخوب څخه د راپورته کیدو سره سم په دواړو لاسو مخ اوسترګی موږل چی دخوب نشه ولاړه سی. (شمائِل ص۱۸)

(۲) سهار چی کله سترګی روښی سی نو دا دعا ووایه

**اَلْحَمْدُلِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَحْیَانَا بَعْدَمَآ اَمَاتَنَا وَاِلَیْهِ النُّشُوْرُ ه**

(بُخاری ص۹۳۶، مسلم ج۲ص۳٤۸، ابوداؤدص۳۳۵ج۲)

**ترجمه:** ټول صیفتونه داللّٰه تعالیٰ دپاره دی چاچی موږ د وژولو وروسته راژوندی کړو او هم دهغه وطرف ته تلل دی.

(۳) کله چی دخوب څخه راپورته سې نو مسواك ووهه.

(مسند احمدص٤٧٥ج٥، ابوداؤد ص۸ج۱)

په اوداسه کی دی دوهم وار مسواك ووهل سی.دخوب څخه د راپورته کیدو وروسته مسواك وهل جلا سنت دی.

(بذل المجهود شرح ابوداؤد جلد۱صفحه۳۵)

(۴) پای جامه یا پرتوګ چی کله اغوندې نو اول په راسته پښه بیا په چپه پښه، کُرته یا قمیص چی اغوندې نو اول راسته لستوڼی واغونده بیا چپه، همدارنګه صدری یا واسکټ.

داغسی چی څپلکی په پښوکه ئې نو اول ئې په راسته پښه پښوکه اوکله چې کاږې نو اول دچپه خوا دا وکاږه بیا دراسته خوا دا وکاږه او دبدن اغوستی هرشی دکښلوهم دغه سنت

طریقه ده.

(بذل المجهود ج ۱،ص۱٤۲،۱٤۳ ، بُخاری ص۸۷۰ ج ۲،ترمذی ص۳۰۷ ج ۱)

⑤ په لوښی کی دلاس وهلو ترمخه درې واره لاسونه ښه پریوله.

(ترمذی ج ۱ص ۱۳)

## بیتُ الخَلاءِ ته دتلو راتلو دعاوی او سنتونه

① د استنجاء دپاره اوبه او لوټی دواړه یوسه،که درې لوټی یا ډبری وی نو مستحب دی، که ترمخه په بیتُ الخَلاء (تشناب) کی انتظام سوی وی نو کافی دی، په فلش کموډو کی دلوټو په خاطر تکلیف جوړیږی. لهٰذا ځینو علماء کرامو دتشناب کاغذ دکارولو مشوره ورکړیده چی کموډ خراب نسی.

(مسلم ص۱٦۳ ج ۱، ترمذی ص۷ ج ۱، ابنِ ماجه ص۲٦)

② رسول صلی اللّٰه علیه وسلم به سر پټ او څپلکی په پښو سره بیتُ الخلاء ته تشریف وړل.

(علیکم بسُنتی ص ۱۱ ج ۱،کنزالعمال ص ۲۰ ج۷)

③ بیتُ الخلاء ته د ننوتلو ترمخه دا دعا ووایه

بِسۡمِ اللّٰهِ.اَللّٰهُمَّ اِنِّیۡٓ اَعُوۡذُ بِکَ مِنَ الۡخُبُثِ وَالۡخَبَآئِثِ ٥

(بخاری ص۲٦ ج ۱، مسلم، ترمذی، ابنِ ماجه)

**ترجمه:** اې اللّٰه ! زه ستا پناه غواړم دخبیث پیریانو څخه نر وی که ښځه.

ف: ملّا علی قاری رحمة اللّٰه علیه په مرقاة کی لیکلی دی چی په احادیثو کی راغلی دی چی ددې دعا په برکت سره دبیتُ الخلاء دخبیثو شیطانانو او بنده ترمینځ پرده جوړه سی ددې په وجه هغه شرمګاه نسی لیدلای، دائې هم لیکلی دی چی دخبیث پر (ب) باندی پیښ او جزم دواړه روا دی. (مرقاة ج۱ ص۳۶۱)

۴ بیتُ الخلاء ته دننوتلو په وخت اول چپه قدم داخل کړه.

(علیکم بسُنتی بحواله ابنِ ماجه، علیکم بسُنتی ص۱۱)

۵ کله چی بدن لڅوې نو په آسانی سره چی څونه په کښته کیناستو سره ئې لڅولای سی هغونه ښه دی.

(ترمذی ص۱۰ ج۱، ابوداؤد ص۶ ج۱، مشکوٰة ص۴۲ ج۱، والدارمی ص۱۷۸ ج ۱)

۶ دبیتُ الخلاء (تشناب) څخه د راوتلو په وخت راسته پښه دباندی راوباسه او چی دباندی راووزې دا دعاء ووایه

غُفُرَانَکَ. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَذْهَبَ عَنِّیَ الْاَذٰی وَعَافَانِیْ٥

(ابنِ ماجه)

ترجمه: اې اللّٰه! زه ستا څخه دمغفرت سوال کوم، ټول صیفتونه هم دالله دپاره دی چاچی زما څخه تکلیف رسونکی شیۍ لیری کړل اوما ته ئې عافیت راکړل.

(ابنِ ماجه ص۲۶)

۷ بیتُ الخلاء ته د ورتګ دمخه که پر انګوشتری(ګوتمی) یایوشی

باندی دقرآن شریف آیت یا درسول اللّٰهﷺ مبارك نوم لیکلی وی اوهغه معلومیږی نو هغه وکاږه دباندی ئې پریږده. (نسائی)
دفراغت څخه وروسته دباندی راسه بیائې واغونده. کوم تعویذ چی په موم جامه کی نیول سوی وی یا په ټوکره کی ګنډل سوی وی د هغه په اغستلو سره ورتلل جائز دی.

(نسائی ص۲۸۹ ج۲، ابوداؤدص٤ ج۱، ابنِ ماجه ص۲٦، مشکوٰۃص٤٢ ج ۱)

۸ دقضاء حاجت په وخت کی مه مخ دقبلې وخواته کوه اومه وهغې خواته شا ګرځوه.

(مشکوٰۃص٤٢ ج۱، ترمذی ص۸ ج۱، ابنِ ماجه ص۲۷، بخاری ص۲٦ ج ۱)

۹ دقضاء حاجت په وخت کی بیله ډیر ضرورته خبری مه کوه همدا رنګه دالله تعالیٰ ذکر هم مه کوه.

(ابوداؤدص۳ ج۱، مشکوٰۃص٤۳ ج ۱)

۱۰ دکوچنیو او غټو بولو دڅاڅکو څخه ځان ډیر وساته ځکه چی اکثره دقبر عذاب دبولو دڅاڅکو څخه ځان دنه ساتلو په خاطر وی.

(بُخاری، ابنِ ماجه ص۲۹)

۱۱ دبولو کولو پر وخت یا د استنجاء وهلو پر وخت مخصوص اندام ته راسته لاس مه وروړه بلکه چپه لاس وروړه، استنجاء په چپه لاس وهه. (بُخاری ص۲۷ ج ا، ابوداؤد ج۱ ص٥)

۱۲ په ځینی ځایو کی بیتُ الخلاء نه وی هغه وخت د داسی اړخ په

ځای کی باید قضاء حاجت وسی چیری چی دبل سړی نظر پرده ونه موښلی. (ابنِ ماجه ص۲۸، ابوداؤد ص٦ ج۱)

۱۳ دبولو کولو دپاره پوست ځای پیدا که چی څاڅکی درونه غورځی او مځکه ئې جذب کړی. (ترمذی ص۱۲ ج۱، ابوداؤد ج۱ ص۲)

۱۴ په ناستی بولی وکه، په ولاړه بولی مه کوه.

(ترمذی ج۱ ص۹)

۱۵ دبولو کولو وروسته که اودس وچوې نو ددیوال وغیره په بغل کی باید وچ سی. (شامی ص۳۳۷ ج۱)

۱۶ اودس دسنت په مطابق په کور کی باید وسی.

(مرقات ص٤۰٤ ج۲)

۱۷ سنت لمونځ په کورکی کول، که موقع نه وی نوپه مسجد کی کول. (مرقات ص۳۹۰ ج۲)

ف: نن سبا چی سنتونه پریښول کیږی، دسنت لمونځ په مسجد کی کول افضل دی. (کمالاتِ اشرفیه ص۱٥٦)

## دکور څخه دوتلو دعاء

۱ دکورڅخه مسجد یا یوځای ته دتلو دپاره چی دباندی راووزې دا دعاء ووایه

**بِسْمِ اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ o**

(ابوداؤد ص۳۳۹ ج۲، ابنِ ماجه ص۲۷۷، ترمذی ص۱۸۱ ج۲)

ترجمه: زه دالله دنامه سره راووتم ، ماپرالله توکل وکی، دګناؤ څخه ساتنه او دنیکی کولو طاقت دالله دطرفه څخه دی.

(۲) په اطمنان سره ورتلل په ځغاسته نه ورتلل. (دا صرف دمسجد دپاره دی). (ابنِ ماجه ص٥٦، ترمذی ص٧٥)

## کور ته دداخلیدو دعاء

(۱) او دمسجد څخه یا دهرځای څخه چی کورته داخل سي دا دعاء ووایه او بیا وکور والاؤ ته سلام وکه.

**اَللّٰهُمَّ اِنِّیٓ اَسْئَلُکَ خَیْرَ الْمَوْلَجِ وَخَیْرَالْمَخْرَجِ بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللّٰهِ خَرَجْنَا وَعَلَی اللّٰهِ رَبَّنَا تَوَكَّلْنَا ٥**

ترجمه: اي الله! زه ستا څخه ښه داخلیدل او ښه وتل غوارم، دالله دنامه سره مونږ داخل سوو او دالله په نامه مونږ ووتلو او مونږ پرخپل الله باندی توکل وکړی. (ابوداؤدص٣٣٩ ج٢)

## مسجد ته د داخلیدو سنتونه

(۱) راسته پښه مسجد ته داخلول. (بُخاری ص٦١ ج١)

(۲) بسم الله ویل. (ابنِ ماجه ص٥٦)

(۳) درودشریف ویل مثلاً **اَلصَّلٰوۃُ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ ٥**

(ابنِ ماجه ص٥٦، ترمذی ص٧١ ج١، مشکوٰۃ ص٧٠ ج١،فیض القدیرص٤٣٢ ج ١)

(۴) دعاء ویل مثلاً **اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِیٓ اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ ٥**

(ابنِ ماجه ص٥٦)

ترجمه: اې الله! زما دپا ره دخپل رحمت دروازې خلاصی کړې.

۵ د اعتکاف نیت کول. (شامی ص۴۳۵ ج۲)

## دمسجد څخه د راوتلو سنتونه

۱ چپه پښه دمسجد څخه دباندی را ایستل. (بُخاری ص۶۱ ج۱)

۲ بسم الله ویل. (ابنِ ماجه ص۵۶)

۳ درودشریف ویل مثلاً اَلصَّلٰوۃُ وَالسَّلَامُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰہِ ٥

(ابنِ ماجه ص۵۶، ترمذی ص۷ ج۱، مشکوٰة ص۷ ج۱، فیض القدیرص۴۳۲ ج۱)

۴ دعاء ویل اَ للّٰھُمَّ اِنِّیۤ اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ.

(ابنِ ماجه ص۵۶، مشکوٰة ص۶۸ ج۱)

ترجمه: اې الله! زه ستا څخه ستا د فضل سوال کوم.

## د مسواك سنتونه

۱ دهر اودس کولو په وخت مسواك وهل سنت دی.

(ابوداؤدص۸ ج۱، الترغیب والترهیب ص۱۰۰ ج۱)

۲ دمسواك نیولو سنت طریقه چی دحضرت عبد الله ابنِ مسعود رضی الله عنه څخه مروی ده چی دراسته لاس خمچه ګوته دی ترمسواك لاندی ونیسی او بټه ګوته دی دمسواك تر لوړ سر لاندی کښیږدی او نوری ګوتی دی پرمسواك سربیره کښیږدی.

(شامی ج۱ ص ۸۵)

# د اوداسه سنتونه

په اوداسه کی اتلس ۱۸ سنتونه دی دهغو په اداکولو سره په کامله طریقه اودس کیږی.

(۱) د اوداسه نیت کول مثلاً داچی زه دلمانځه دمباح کیدو دپاره اودس کوم. (نسائی ص۲٤ ج۱)

(۲) **بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ** په ویولو سره اودس کول. په ځینو روایاتو کی د اوداسه **بِسۡمِ اللّٰهِ** داسی راغلي ده.

**بِسۡمِ اللّٰهِ الۡعَظِيۡمِ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰهِ عَلٰى دِيۡنِ الۡاِسۡلَامِ ٥**

(مراقی مع الطحطاوی ص۱۰۵ ج۱)

اوپه ځینی روایا تو کی داسی هم ده

**بِسۡمِ اللّٰهِ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰهِ.** (مجمع الزوائدج۱ص۵۱۳)

او په اوداسه کی دا دعاء ویل سنت ده.

**اَللّٰهُمَّ اغۡفِرۡلِىۡ ذَنۡبِىۡ وَوَسِّعۡ لِىۡ فِىۡ دَارِىۡ**

**وَبَارِكۡ لِىۡ فِىۡ رِزۡقِىۡ ٥** (عمل الیوم واللیلة ص۴۲)

(۳) دواړه لاسونه تر بندو پوری پریولل. (ابوداؤدص۱۵ج۱)

(۴) مسواك و هل، که مسواك نه وی نوپه ګوته غاښونه موږل.

(مراقی مع الطحطاوی ج۱ص۱۰۵،۱۰٦)

(۵) دري واری په خوله اوبه لغړول. (ابوداؤدص۱٤ج۱)

(٦) دري واری په پزه کی اوبه اچول او دري واره پزه سوغول.
(ابوداؤد ص۱۵ج۱)

⑦ په خوله او پزه کی په اوبه لغړولو کی مبالغه (ښه پورته) کول که روژه نه وی. (ابوداؤد ص۱۹ ج۱، مراقی ص ۱۰۹ ج۱)

⑧ هر اندام درې واری پریولل. (بُخاری ص۲۸، ۲۷ ج۱)

⑨ دمخ پریولو په وخت کی دږیری خلال کول.

(ابوداؤدص ۱۹ ج۱، شامی ص۲۳۸ ج۱)

ف: په ږیره کی دخلال سنت طریقه دا ده چی د درې واری مخ پریولو وروسته په ورغوی کی اوبه واخله دزنی سره ئې په تالوکی واچوه او دږیری خلال وکه او ووایه

هٰكَذَآ اَمَرَنِیْ رَبِّیْ

⑩ دلاسو او پښو پریولو په وخت کی دګوتو خلال کول.

(ابوداؤد ص۱۹ ج ۱)

⑪ یوواری دټول سر مسح کول.

(سعایه ص۱۳۲ ج۱، شامی ص۲٤۳ ج۱)

⑫ دسر دمسح سره دغوږو مسح کول.

(نسائی ص۲۹ ج۱، شامی ص۲٤۳ ج ۱)

⑬ د اوداسه اندامونه په موږلو سره پریولل. (مراقی ص۱۱۲)

⑭ اندامونه پیوسته پریولل. (مراقی ص۱۱۳)

⑮ په ترتیب سره اودس کول. (هداية ص۲۳ ج۱)

(۱۶) راسته اندام اول پریولل. (بخاری ص ۲۹ ج ۱)

(۱۷) دسر دمخ دخوا څخه مسح شروع کول.

(بخاری ص ۳۱ ج ۱)

(۱۸) دغاړی مسح کول، دحلق مسح دی نه کوی دا بدعت دی.

(مرا قی مع الطحطاوی ج ۱ ص ۱۱۵)

(۱۹) د اوداسه وروسته کلمه شهادت

**اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْکَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًاعَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ٥**

دویلو وروسته دا دعاء ووایه

**اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِىْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِىْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ٥**

(ترمذی ص ۱۸ ج ۱)

**ترجمه:** اې الله! ته ماپه ډیر توبه کونکو اوښه پاکی حاصل کونکو کی شامل کړې.

**ف:** ددې دعا په باره کی دمشکوٰة په شرح مرقات کی ملّا علی قاری رحمة الله علیه فرمایلی دی چی اودس ظاهری طهارت (پاکی) دی، ددې دعا څخه دباطنی طهارت (پاکی) درخواست ورکړه سوی دی چی اول اختیاری وو هغه موږ وکی اوس ته پخپل رحمت سره زموږ باطن هم راپاك کړې.

## د اوداسه فرائض

ف: د اوداسه پورتنی طریقه دسنت په مطابق ده. په اوداسه کی ځینی شیان فرض دی که په هغوکی یوهم پا ته سی یاخه کمی پکښنی راسی نو اودس نه کیږی او سړی بې اودسه پاتیږی. په اوداسه کی فقط څلورشیان فرض دی.

(۱) یوواری ټول مخ پریولل. (حاشیه الطحاوی علی المراقی ص۹۱،۹۲ ج۱، هدایة ص ۱٦ ج۱، شامی ص ۲۰۸،۲۰۹ ج۱)

(۲) یو یو وار ترڅنګلو پوری دواړه لاسونه پریولل.

(حاشیه الطحاوی علی المراقی ص۹٤ ج۱، شامی ص۲۱۱،۲۱۲ ج۱، هدایة ص۱٦ ج۱)

(۳) یوواری د سر دڅلورمی حصې مسح کول.

(شامی ص۲۱۳ ج۱، حاشیه الطحطاوی۹۵ ج۱، هدایة ص۱٦ ج۱)

(۴) یو یو وار تربجلکو پوری دواړی پښې پریولل.

(شامی ص ۲۱۱،۲۱۲ ج ا، حاشیه الطحطاوی ص۹٤،۹۵ ج۱)

په دونه کولو سره به اودس وسی، مګر دسنت په مطابق اودس کولوسره اودس کامليږی اوډیر ثواب حاصليږی.

## دغسل کولو سنت طریقه

اول دواړه لاسونه تربندو پوری پریوله بیا د استنجاء ځای پریوله که پر لاس او د استنجاء پرځای نجاست(مرداری)

لګیدلې وی که نه وی لګیدلې په هرحال کی دا دواړه ترمخه باید پریولل سی(او د استنجاء ځای دپریولولو څخه معنٰی داده چی دکوچنی او دغټ استنجاء دواړه ځایه پریوله) بیا پربدن باندی که یوځای منی یا بله ناپاکی لګیدلې وی نو هغه پاك که. ددې وروسته دسنت په مطابق اودس تازه که. که په پښو کی اوبه جمع کیدلې نو پښې مه پریوله.

د اوداسه وروسته درې واره پر سر باندی اوبه واچوه (دونه اوبه پر واچوه چی دسرڅخه ترپښو پوری پر ټوله بدن وبهیږی) او بدن په لاسو باندی موږه چی دبدن هیڅ حصه وچه پاته نسی، که د وریښته برابر ځای هم وچ پاته سو نوغسل نه کیږی. غرض پرټوله بدن باندی اوبه وبهیوه. بیا دهغه ځای څخه ایسته سه پاك ځای ته راسه پښې پریوله مګرکه دی د اوداسه په وخت کی پښې پریولی وې نو اوس ئې دپریولو ضرورت نسته. (بهشتی زیور، شامی جلد۱ صفحه ۱۵۷تر ۱۵۹)

**ف:** دغسل وروسته بدن په ټوکر (ټووال) باندی وچول هم ثابت دی او نه وچول هم. لهٰذا په دواړو کی چی کوم صورت هم ته اختیارکې دسنت نیت پکښی وکه.

(نسائی جلد۱ صفحه۳۱، ترمذی جلد۱ صفحه۱۸، شامی جلد۱ صفحه ۹۷)

## دغسل فرائض

دغسل دا پورتنی طریقه دسنت په مطابق ده، په غسل کی ځینی شیان فرض دی چی دهغو ماسوا غسل نه صحیح کیږی او سړی ناپاکه پاتیږی. لهٰذا دغسل دفرائضو علم ضروری دی. په غسل کی فقط درې شیان فرض دی.

(۱) په خوله اوبه لغړول (داسی چی ټوله خولې ته اوبه ورسیږی).

(بهشتی زیور حصّه ۱ ص ۵۶ ، شامی ۲۹۲ ج ۱)

(۲) په پزه اوبه لغړول (ترکوم ځای چی پزه نرمه ده).

(نسائی ص ۵۰ ج ۱)

(۳) پر ټول بدن باندی اوبه اچول. (بهشتی زیورحصّه اوّل)

## د اذان او اقامت سنتونه

(۱) اذان او اقامت دقبلې وخواته کول سنت دی.

(مراقی مع الطحطاوی ص ۲۷۶ ج ۱)

(۲) د اذان توری کرار کرار ویل او د اقامت توری ژر ژر ویل سنت دی. (ترمذی ص۴۸ ج۱)

(۳) په اذان کی د **حَیَّی عَلَی الصَّلٰوۃِ ، حَیَّی عَلَی الْفَلَاحِ** ویلو په وخت کی مؤذن ته راسته او چپه طرف ته مخ گرزول سنت دی مگر سینه او قدمونه دی دقبلې وخواته وی.

(مراقی مع الطحطاوی ص۲۷۷ ج ۱، شامی ص۵۳ ج ۲)

④ کله چی دمؤذن څخه د اذان کلمې واورې نو څنګه چی هغه وائی هغه سی کلمې ورسره وایه او د **حَیَّ عَلَی الصَّلٰوۃِ** او **حَیَّ عَلَی الْفَلَاحِ** په جواب کی **لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّۃَ اِلَّا بِاللّٰہِ** ووایه. (بخاری ص۸٦ ج۱، مسلم ص١٦٦ ج۱)

⑤ د سهار په اذان کی د **اَلصَّلٰوۃُ خَیْرٌ مِّنَ النَّوْمِ** په جواب کی **صَدَقْتَ وَبَرَرْتَ** ویل کیږی. (مراقی مع الطحطاوی ص ۲۸۵ ج۱)

⑥ د اقامت جواب هم د اذان په رقم ورکول کیږی مګرد **قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوۃُ** په جواب کی **اَقَامَهَااللّٰہُ وَاَدَامَهَا** دی وویل سی. (ابوداؤدص۷۸ ج۱)

⑦ د اذان جواب ورکولو وروسته درودشریف ویل سنت دی.

(مسلم ص ١٦٦ ج۱)

د درودشریف ویلو وروسته دا دعاء ووایه کوم چی په بخاری شریف کتابُ الاذان کی راغلې ده:

⑧ د اذان وروسته دعاء

**اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّآمَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَآئِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَ نِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَ نِ الَّذِیْ وَعَدْتَّهٗ ط اِنَّکَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ o**

**ترجمه:** اې اللّٰه! ددې ټولی بلنی ربه او د قائمیدونکی لمانځه ربه

محمد ﷺ ته وسیله عطاء که او هغه ته فضیلت عطاء کړې او هغه مقامِ محمود ته ورسوې دکوم چی تا وعده دهغه سره کړیده، بې شکه چی ته وعده خلافی نه کوې. (بخاری ص۸٦ ج۱)

**اِنَّکَ لَا تُـخۡلِفُ الۡمِيۡعَادَ** په بخاری شریف کی نسته. امام بیهقی په سننِ کبیر کی نقل کړی دی. (حصن حصین مع شرح فضل مبین)

**وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيۡعَةَ** لفظ اود **يـَآاَرۡحَمَ الرَّاحِمِيۡنَ** الفاظ کوم چی مشهوره دی، ددې ثبوت په روایاتو کی نسته. ملّا علی قاری په مرقاة جلد نمبر۲ صفحه ۱٦۳ کی فرمائی

**وَاَمَّازِيَادَةُ وَالدَّرَجَةَ الرَّفِيۡعَةَ اَلۡمُشۡتَهِرَةُ عَلَى الۡاَلۡسِنَةِ فَقَالَ السَّخَاوِىُ لَمۡ اَرَهٗ فِى شَىۡءٍ مِّنَ الرِّوَايَاتِ.**

**ف:** پر دې دعاء باندی د محمد ﷺ دشفاعت او دحُسنِ خاتمې (دښې خاتمې) انعام دی. (مرقاة جلد۲ نمبر صفحه ۳۳۱)

## د لمانځه یوپنځوس سنتونه
## د ولاړی یوولس سنتونه

(۱) د تکبیرتحریمه په وخت سیده (سیخ) دریدل یعنی سرنه ځړول. (طحطاوی علی المراقی ج۱ص ۳۰۲)

(۲) د دواړو پښو ترمینځ دځلورو ګوتو فاصله پریښول او دپښو ګوتی دقبلې وخواته ساتل. (طحطاوی ص۳۵۷ ج۱، شامی ص۲۰۵ ج۲)

**پاملرنه:** ځینو فقهاؤ دځلورو ګوتو فاصله مستحب بللې ده لیکن په فقه کې دمستحب اطلاق پرسنت او دسنت اطلاق پرمستحب کیږی.

کذا فی الشامی تجویزاطلاق اسم المستحب علی السنة وعکسه(ص۴۸ ج ۳)

(۳) دمقتدی تکبیرتحریمه د امام دتکبیرتحریمه سره یو ځای کیدل.

**ف:** دمقتدی تکبیرتحریمه که چیری د امام دتکبیرتحریمه ترمخه ختمه سی نو اقتدا ئې نه صحیح کیږی.

(طحطاوی علی المراقی ص ۳۵۰ ج ۱)

(۴) دتکبیرتحریمه په وخت دواړه لاسونه ترغوږو پوری پورته کول.

(ابوداؤد ص ۱۰۵ ج ۱)

(۵) ورغوی دقبلې وخواته ساتل.

(طحطاوی علی المراقی ص ۳۵۰ ج ۱، شامی ص ۲۰۳،۲۰۲ ج ۲)

(۶) ګوتی پرخپل حال باندی ساتل یعنی چی نه ډیری خلاصی وی او نه ډیری بندی.

(مراقی مع الطحطاوی ص ۳۴۹ ج ۱ باب صفه الصّلاةص ۱۷۱ ج ۲)

(۷) دراسته لاس ورغوی دچپه لاس د ورغوی پرشا ایښول.

(طحطاوی علی المراقی ص ۳۵۲،۳۵۱ ج ۱)

(۸) په خمچی او بتهی ګوتی باندی حلقه جوړلو سره دلاس بند نیول.

(طحطاوی ص ۳۵۲ ج ۱)

(۹) دمینځ درې ګوتی پر بند باندی ایښول. (طحطاوی ص ۳۵۲ ج ۱)

١٠ ترنامه لاندی لاسونه تړل. (شامی ص١٨٧ ج٢)

١١ ثناء (**سُبۡحَانَکَ اللّٰهُمَّ**) ویل. (طحطاوی علی المراقی ص٣٥١ ج١)

## دقرأت اووه سنتونه

١ تعوُّذ یعنی **اَعُوۡذُ بِاللّٰهِ** ویل. (طحطاوی علی المراقی ص٣٥٣ ج١)

٢ تسمیه یعنی دهر رکعت په سرکی **بِسۡمِ اللّٰهِ** ویل.

(طحطاوی علی المراقی ص ٣٥٣ ج١)

٣ په کراره آمین ویل. (طحطاوی علی المراقی ص٣٥٥ ج١)

٤ دسهار او ماپښین په لمنځوکی طوالِ مفصّل یعنی دسورهٔ حجرات څخه تر سورهٔ بروج پوری، دمازدیګر او ماخستن په لمنځوکی اوساطِ مفصّل یعنی دسورهٔ بروج څخه ترسورهٔ **لَمۡ یَکُنۡ** پوری او دماښام په لمانځه کی قصارِ مفصّل یعنی دسورهٔ **لَمۡ یَکُنۡ** څخه تر سورهٔ ناس پوری په سورتوکی یو سورت ویل.(طحطاوی علی المراقی ج١ ص٣٥٧،٣٥٨)

٥ دسهار اول رکعت اوږدول. (طحطاوی علی المراقی ص ٣٦٠ ج١)

٦ ثناء، تعوُّذ، تسمیه او آمین کرار ویل.

(طحطاوی علی المراقی ص٣٥٥،٣٥٦ ج١)

٧ دفرض په دریم اوڅلورم رکعت کی فقط سورهٔ فاتحه (**اَلۡحَمۡدُ لِلّٰه**) ویل. (طحطاوی علی المراقی ص ٣٦٨ ج١)

# د رکوع اته سنتونه

١ د رکوع تکبیر ویل. (طحطاوی علی المراقی ص ٣٦٠ ج ١)

٢ په رکوع کی په دواړو لاسو ځنګنونه نیول.

(طحطاوی علی المراقی ص ٣٦١ ج ١)

٣ دځنګنو په نیولو کی ګوتی خلاصی نیول.

(طحطاوی علی المراقی ص ٣٦٢ ج ١)

٤ ملا ښه کښته کول. (شامی ص١٩٦ ج٢)

٥ پوندی سیده(سیخی) کول. (شامی ص١٩٧ ج٢)

٦ سر او کوناټی سره برابره ول. (شامی ص١٩٦،١٩٧ ج٢)

٧ په رکوع کی درې واره **سُبْحَانَ رَبِّیَ الْعَظِیْمِ** ویل. (طحطاوی ص١٤٤)

٨ د رکوع څخه په راپورته کیدو کی امام ته **سَمِعَ اللّٰہُ لِمَنْ حَمِدَہٗ** په لوړ آواز ویل او مقتدی ته **رَبَّنَالَکَ الْحَمْدُ** او منفرد (یوازی) ته دواړه ویل (په کراره) او د رکوع وروسته په اطمنان سره سیده (سیخ) دریدل. (شامی ص ٢٠١ ج٢)

# دسجدې دوولس سنتونه

١ سجدې ته دتګ په وخت کی تکبیر ویل. (شامی ص٢٠٢ ج٢)

٢ په سجده کی اول دواړه ځنګنونه ایښول.

(شامی ص٢٠٢ ج٢، طحطاوی علی المراقی٣٦٣ ج١)

(۳) بیا دواړه لاسونه ایښنول.

(شامی ص۲۰۲ ج۲، طحطاوی علی المراقی ص ۳٦۳ ج۱)

(۴) بیا پزه ایښنول. (شامی ص۲۰۳ ج۲ ، طحطاوی ص۳٦۳ ج۱)

(۵) بیا تندی ایښنول. (شامی ص۲۰۳ ج۲ ، طحطاوی ص۳٦۳ ج۱)

(٦) په سجده کی سر د دواړو لاسو په مینځ کی ایښنول.

(شامی ص۲۰۲ ج۲ ، طحطاوی علی المراقی ص۳٦٤ ج۱)

(۷) په سجده کی نس د ورنو څخه جلا ساتل او بغلونه دبازو ګانو (متهو) څخه جلا ساتل. (طحطاوی علی المراقی ص۳٦۵ ج۱)

(۸) څنګلی دمځکی څخه لوړ ساتل.

(طحطاوی علی المراقی ص۳٦۵ ج۱)

(۹) په سجده کی درې واره **سُبْحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلٰی** ویل.

(هدایة ج۱ ص۱۰۹)

(۱۰) دسجدې څخه د راپورته کیدو تکبیر ویل.(شامی ص ۲۱۰،۲۱۱ ج ۲)

(۱۱) دسجدې څخه د راپورته کیدو په وخت کی اول تندی، بیاپزه، بیا لاسونه بیا ځنګنونه پورته کول.

(شامی ص۲۰۳ ج۲، طحطاوی علی المراقی ص۳٦٤ ج۱)

(۱۲) د دواړو سجدو په مابینځ کی په اطمنان سره کښنیستل.

(طحطاوی علی المراقی ص۳٦٦ ج۱)

# دناستی دیارلس سنتونه

١ راسته پښنه درول او چپه پښنه په غوږولو سره پرهغې باندی کښینستل. (طحطاوی علی المراقی ص٣٦٦ ج١)

٢ دوارہ لاسونه پر ورنو باندی ایښول.(طحطاوی علی المراقی ص٣٦٦ ج١)

٣ په التحیات کی پر **اَشۡهَدُاَنۡ لَّآاِلٰهَ** باندی دشهادت ګوته پورته کول او پر **اِلَّااللّٰهُ** باندی ئې کښته کول.(طحطاوی علی المراقی ص٣٦٧ ج١)

٤ په قعدۀ آخره (آخری ناسته) کی درودشریف ویل.

(طحطاوی علی المراقی ص٣٦٩ ج١)

٥ د درودشریف وروسته دعاء ماثوره په هغو الفاظو کی چی دقرآن وحدیث سره مشابه وی ویل.

(طحطاوی علی المراقی ص ٣٧١ ج١)

٦ دوارو خواؤ(راسته چپه) ته سلام ګرځول.

(طحطاوی علی المراقی ص ٣٧٣ ج١)

٧ د سلام ابتداء دراسته خوا څخه کول.

(طحطاوی علی المراقی ص٣٧٣ ج١)

٨ امام ته دمقتدیانو،ملائیکواونیکو پیریانو نیت کول(په سلام کی).

(طحطاوی علی المراقی ص٣٧٣،٣٧٤ ج١)

٩ مقتدی ته د امام، ملائیکو او نیکو پیریانو او د راسته چپه مقتدیانو نیت کول(په سلام کی). (طحطاوی علی المراقی ص٣٧٥ ج١)

(۱۰) منفرد(یوازی) ته فقط دملائیکو نیت کول(په سلام کی).

(طحطاوی علی المراقی ص۳۷۵ ج۱)

(۱۱) مقتدی ته د امام سره یوځای سلام ګرزول.

(طحطاوی علی المراقی ص ۳۷۵ ج۱)

(۱۲) د دوهم سلام آواز تر اول سلام آواز کرار ویل.

(طحطاوی علی المراقی ص۳۷۵ ج۱)

(۱۳) مسبوق (دچا چی لمونځ پاته وی) ته د امام دختمیدو انتظار کول. (طحطاوی علی المراقی ص۳۷۵ ج۱)

## دلمانځه فرائض

(۱) تکبیر تحریمه. (شامی ص۱۲۸ ج۲، حاشیه الطحطاوی ص۳۰ ج۱)

(۲) قیام (ولاړه). (شامی ص۱۳۱ ج۲،حاشیه الطحطاوی ص۳۰۹،۳۱۰ ج۱)

(۳) قرأت (دقرآن شریف څخه یو سورت یادرې کوچنی یا یوغټ آیت ویل). (حاشیه الطحطاوی ص۳۱۰،۳۱۱ ، شامی ص۱۳۳ ج۲)

(۴) رکوع کول. (شامی ص۱۳۳ ج۲، حاشیه الطحطاوی ص۳۱۵)

(۵) دواړی سجدې کول. (حاشیه الطحطاوی ص۳۱٦ ج۱)

(٦) په قعدهٔ آخره (آخری ناسته) کی د التحیات په اندازه کبنینستل. که په پورتنی شیانو کی یوهم پاته سو نولمونځ نه کیږی، بیرته کول غواړی.

پاملرنه: دلمانځه واجبات، دلمانځه مفسدات او نور مسائل په بهشتی

زیور یا آئینهٔ نماز تالیف دمفتی سعید احمد صاحب رحمة اللّٰه علیه مفتی اعظم مظاهرالعلوم کی په کتو سره عمل وکی.

## دښځوپه لمانځه کی خاص فرق

(۱) ښځه دی دتکبیر تحریمه ویلو په وخت کی دوارہ لاسونه تر ورږو پوری پورته کی مګر لاسونه دی تر پوړنی(ټکرۍ) دباندی نه راباسی. (حصن حصین ص ۲۲٤)

(۲) پرسینه دی لاسونه وتړی او د راسته لاس ورغوی دی دچپه لاس ورغوی پرشا کښیږدی. دنارینوو په رقم دی په خمچه او بټه ګوته دلاس بند نه نیسی. (مرقات ص۳٥ ج۳)

(۳) په رکوع کی دی لږ کښته سی او د دوارو لاسو ګوتی دی بندی پر ځنګنو کښیږدی، ګوتی دی نه خلاصه وی. دوارہ بازوګان (مټی) دی دبغلو سره ښه موښتی وساتی او ددوارو پښو بجلکی دی ښه سره ومښلوی. (طحطاوی شامی ج۲ص۱۸۸ )

(۴) په سجده کی دی پښې نه دروی بلکه راسته خواته دې وباسی او ښه ورټوله او موښتې سجده دی وکی چی نس د ورنو سره او بازوګان(مټی) دی دبغلو سره وموښلوی او ځنګلی دی پرمځکه کښیږدی. (بهشتی زیورحصّه دوم ص۱۷، شامی ج۲ص۲۱۱)

(۵) په قعده (ناسته) کی دی پر چپه خوا کښینی او دواړی پښې دی راسته خوا ته وباسی او پر ورنو دی دوارہ لاسونه کښیږدی او دلاسو ګوتی دی ښه مښتی وساتی. (طحطاوی شامی ج۲ص۲۱۱)

# دلمانځه هغه ادب چې
# دټولو دپاره برابر دی

په قیام(ولاړه) کې دسجدې پر ځای ، په رکوع کې پر پښو، په سجده کې پر پزه او د ناستې په وخت کې دغیږ وخواته ، دسلام ګرځولو په وخت کې پر وږو باندې دې نظر وی او که اړږمی ورسی نو په پوره زور سره دې راوګرځوی ، او چې ځونه کیږی خوله دې بنده وساتی او کله چې دټوخې اثر معلوم سی نوهم چې ځونه کیږی ضبط دې کی. (ماخوذ از آئینۂ نماز تالیف حضرت مفتی سعیداحمد صاحب رحمة اللّٰه علیه مفتی اعظم مظاهرعلوم)

دهر فرض لمانځه وروسته ددې دعاؤ څخه دعاء وواياست.دسلام ګرځولو وروسته **اَسْتَغْفِرُاللّٰه** درې واره ویل سنت دی. بیا دا ووایه

① **اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْکَ السَّلَامُ تَبَارَکْتَ يَاذَاالْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ.** (طحطاوی ، شامی ج۲ص۱۸۲)

**ترجمه:** اې اللّٰه! ته سلامتی والا یی او هم ستا څخه سلامتی حاصلیدای سی ته بابرکت یی اې بزرګی او کرم کونکی.

**پاملرنه:** ملّاعلی قاری رحمة اللّٰه علیه په مرقاة جلدنمبر۲صفحه نمبر۳۵۸ کې لیکلی دی چې

**اِلَيْکَ يَرْجِعُ السَّلَامُ فَحَيِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلَامِ وَاَدْخِلْنَا دَارَکَ دَارَالسَّلَامِ فَلَا اَصْلَ لَهٗ** ٥ (طحطاوی ، شامی ج۲ص۱۸۸)

یعنی ددې جملو په روایاتو کی ثبوت نسته بلکه ځینی قصه ګو خلګو اضافه کړیده

(۲) لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌo (حصن حصین ص۲۲۳)

(۳) اَللّٰهُمَّ اِنِّیْٓ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الْجُبْنِ وَاَعُوْذُبِکَ مِنْ اَنْ اُرَدَّ اِلٰٓی اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَاَعُوْذُبِکَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْیَا وَاَعُوْذُبِکَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِo (حصن حصین ص۲۲۸)

**ترجمه:** اې اللّٰه!زه ستا پناه غوارم دبیریدو څخه اوستا پناه غوارم ددې خبری څخه چی ورسیږم وه زیات عمر ته اوستا پناه غوارم د دنیا دفتنی څخه اوستا پناه غوارم دقبر دعذاب څخه.

## دجمعې سنتونه

(۱) غسل کول. (بخاری ص۱۲۰ج۱)

(۲) ښه او پاك کالی اغوستل. (ابوداؤد ص۱۵٤ج۱)

(۳) مسجد ته د ژرتللو فکر کول.(ترمذی ص۱۱۲ج۱،ابنِ ماجه ج۱ص ۷٦)

(۴) مسجد ته پیاده تلل. (ابنِ ماجه ص٥٦ج۱)

(۵) امام ته د نژدې کښېنستلو کوښښ کول.
(ابنِ ماجه ص۷٦، ترمذی ص ۱۱۱ج ۱)

(٦) که صفونه ډك وی نو دخلګو ترڅټو په اوښتو سره مخ ته نه تلل. (ابُوداؤدص۱٥۹ج۱، ترمذی ص۱۱٤ج۱)

۷ یو فضول کارنه کول یعنی مثلاً پخپلو کالو یا وریښتانو بازی نه کول. (ابنِ ماجه ص۷۸)

۸ خطبه په غور سره اوریدل. (ترمذی ص۱۱۴ ج۱، ابنِ ماجه ص۷۸)

۹ ددې څخه علاوه دجمعې په ورځ څوك چی سورهٔ کهف ووائی دهغه دپاره دعرش دلاندی څخه د آسمان برابر لوړ یو نور به ښکاره سی کوم چی دقیامت په تیاره کی به دده پکار ورځیاو ددې جمعې ترتیری جمعې ټوله خطاوی (صغیره) دده وربخښل کیږی.

(بهشتی زیورحصّه۱۱ ص۷۷، ابنِ کثیرص۱۲۲ ج۵،الترغیب والترهیب ص۳۵۳ ج ۱)

۱۰ دنبی کریمﷺ ارشاد دی چی دجمعې په ورځ پر ما باندی ډیر درود وایاست چیدرود ماته وړاندی کیږی. (ابنِ ماجه ص۷۶)

۱۱ دجمعې په ورځ وریښتان غوړول او خوشبوئی یا عطر استعمالول سنت دی. (بخاری ص۱۲۱ ج۱)

## د ډوډی یوڅو سنتونه

۱ دسترخوان اوارول. (بخاری ص۸۱۸ ج۲)

۲ دوارہ لاسونه تر بندو پوری پریولل.

(بخاری ص۸۰۹ ج۲، مسلم ص۱۷۲ ج۲)

۳ **بِسۡمِ اللّٰه** ویل په لوړ آواز سره. (بخاری ص۸۱۰ ج۲)

۴ په راسته لاس خوراك کول. (مسلم ص۱۷۲ ج۲)

۵ د ډوډی په مجلس کی کوم سړی چیتر ټولوبزرګ او لوی

وی په هغه ډوډی شروع کول. (مسلم عن حذیفه ص۱۷۱ ج۲)

٦ که خوارہ یو رقم وی نو دخپل مخ څخه خوړل.(بخاری ص ۸۱۰ ج ۲)

٧ که چیری یوه گوله ولویږی نو راپورته ئې که په پاکولو سره ئې خوړل. (مسلم ص۱۷۵ ج۲)

٨ په څنگ وهلو سره خوراك نه کول. (بخاری ص۸۱۲ج۲)

٩ په خوړو کی عیب نه را ایستل.

(بخاری ص۸۱٤ ج۲،مسلم ص۱۸۷ ج ۲)

١٠ څپلکی په کښلو سره ډوډی خوړل. (مشکوٰة ص۳٦۸ ج۲)

١١ د خوراك په وخت کی پر دوو گوتو کښینستل چی دوارہ ځنگنونه ولاړ وی اوکوناتې پرمځکه وی یا دی یو ځنگون ولاړوی او بل ځنگون پر مځکه په ایښولو سره پر هغه دی کښینی یا دی دوارہ ځنگنونه پرمځکه په ایښولو سره دقعدی (التحیات) په رقم کښینی اودمخ وخواته دی لږ کوږ کښینی.

(مرقات ص۱۰۲ ج۸، نووی شرح مسلم ص ۱۸۰ ج۲)

١٢ د ډوډی لوښی، پیاله اوغاب پاکول، بیا لوښی دهغه دپاره دمغفرت دعاء کوی. (ابنِ ماجه ص۲۳۵)

١٣ دخوراك وروسته گوتی څټل. (مسلم ص۱۷۵ ج۲)

١٤ د خوراك وروسته دعاء کول

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مُسْلِمِیْنَ٥**

(ترمذی ص۱۸٤ ج۲، ابوداؤد ص۱۸۲ ج۲، ابنِ ماجه ص۲۳٦)

**ترجمه:** ټول صفت د اللّٰه دپاره دی چا چی په موږ وخوړل او وچښل او مسلمان کړی ئی یو.

(۱۵) اول دسترخوان پورته کول بیا خپله ولاړیدل.(ابنِ ماجه ص۲۳۷)

(۱٦) د دسترخوان دپورته کولو دعاء کول

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا كَثِيْرًا طَيِّبًا مُّبَارَكًا فِيْهِ غَيْرَ مَكْفِيٍّ وَّلَا مُوَدَّعٍ وَّلَا مُسْتَغْنًى عَنْهُ رَبَّنَا ٥**

(بخاری ص ۸۲۰ ج۲)

**ترجمه:** ټول صفت د اللّٰه دپاره دی داسی صفت چی ډیر پاك او بابرکته وی، اې زموږ ربه موږ دا خواړه په کافی بللو سره یا بالکل په پریښولو سره یا ددې څخه ځان په مستغنی بللو سره نه پورته کوو.

(۱۷) دواړه لاسونه پریولل. (ترمذی ص٦ ج۲، ابوداؤدص۱۸۲ ج۲)

(۱۸) په خوله اوبه لغړول. (بخاری ص ۸۲۰ ج۲)

(۱۹) که په سرکی **بِسْمِ اللّٰه** ویل هیره سی نو داسی دی ووائی **بِسْمِ اللّٰهِ اَوَّلَهٗ وَاٰخِرَهٗ ٥** (ترمذی ص۷ ج۲، ابوداؤدص۱۷۳ ج۲)

(۲۰) کله چی دیوچا دعوت (دمیلمستیا ډوډی) وخورې نو هغه ته داسی دعاء وکه **اَللّٰهُمَّ اَطْعِمْ مَّنْ اَطْعَمَنِیْ وَاسْقِ مَنْ سَقَانِیْ ٥**

**ترجمه:** اې اللّٰه! چا چی وخوړه په ما په هغه ئې وخورې او چاچی وچښل په ما په هغه ئې وچیښې.(مسلم ص۱۸۰ ج۲)

(۲۱) سرکه کارول سنت ده په کوم کورکی چی سرکه وی هغه کور

دسالن (کتغ) محتاجه نه بلل کیږی. (ابنِ ماجه ص۲۳۸)

(۲۲) خالص غنم که یو ځوك کاروی نوهغه ته پکار ده چی په هغه کی یوځه وربشی هم ګډی کړی، که ځه هم لږ وی چی پر سنت باندی دعمل کولو ثواب حاصل سی.(الجامع الصغیر ص۹۷۹ج۲)

(۲۳) غوښی خوړل سنت دی، د رسول اللهﷺ فرمان دی چی په دنیا او آخرت کی دخوړو سردار غوښه ده.

(الاوسط للطبرانی ص۲۳۲ج۸)

(۲۴) دخپل مسلمان ورور دعوت (میلمستیا) قبلول سنت دی. هوکې(زیاته پیسه) دسود یا درشوت‌وی یا هغه په بدکاری اخته وی نو دهغه میلمستیا باید قبوله نسی.(ابوداؤدص۱٦۹ج۲)

(۲۵) دمړی قریبانو یعنی دمړی کوروالاؤ ته ډوډی ورکول سنت ده.

(مسلم ص۱۷۲ج۲، ابنِ ماجه ص۱۱۵)

## د اوبو چښلو سنتونه

(۱) په راسته لاس چښل، ځکه چی‌شیطان ئې په چپه لاس چښی.

(مسلم ص۱۷۲ج۲)

(۲) د اوبو چښلو ترمخه که ولاړ وې نو کښینستل، په ولاړی چښل منع دی. (مسلم ص۱۷۳ج۲)

(۳) په **بِسۡمِ الله** ویلوسره چښل او دچښلو وروسته **اَلۡحَمۡدُلِلّٰهِ** ویل.

(ترمذی ص۱۰ج۲، مشکوٰة ص۳۷۱ج۲)

۴ په درې ساه ئې چښل او دساه کښلو په وخت لوښی دخولی څخه لیری کول. (مسلم ص۱۷٤ ج۲، ترمذی ص۱۰ ج۲)

۵ دلوښی دماتی څنډی څخه نه چښل. (ابوداؤد ص۱٦۷ ج۲)

٦ د ژی دخولی څخه په خوله اوبه مه چښنه یا که یو بل داسی لوښی وی چی دهغه څخه یودم دډیرو اوبو دراتللو اندیښنه وی یا دا اندیښنه وی چی په دی کی به یو مار یا لړم راسی.

(بخاری ص۸٤۱ ج۲، مسلم ص۱۷۳ ج۲)

۷ صرف د اوبو چښلو وروسته دا دعاء ویل هم سنت ده.

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ سَقَانَا عَذْبًا فُرَاتًا بِرَحْمَتِهٖ وَلَمْ یَجْعَلْهُ مِلْحًا اُجَاجًا بِذُنُوْبِنَاo** (روح المعانی ص۱٤۹ پاره ۲۷)

**ترجمه:** ټول صفتونه دالله دپاره دی چاچی پخپل رحمت سره په موږ خوږې خوندوری اوبه وچیښلې او زموږ دګناهو په سبب ئې دا ترشی او تروې کړی نه دی.

۸ د اوبوچښلو وروسته که ئې نوروته ورکوې نواول ئې دراسته خوا کس ته ورکه اوبیا دی په دغه ترتیب سره دورختم سی، په همدې شکل دی چای یا شربت هم ورکړه سی.

(بخاری ص۸٤۰ ج۲، مسلم ص۱۷٤ ج۲)

۹ دشیدو چښلو وروسته دا دعاء ووایه

**اَللّٰهُمَّ بَارِکْ لَنَافِیْهِ وَزِدْنَامِنْهُ o**

**ترجمه:** اې اللّٰه! ته پدې کی موږ ته برکت راکې او دا موږ ته نور هم ډیر راپه نصیب کړې.(ابوداؤدص۱٦۸ ج۲، ترمذی ص۱۸۳ ج ۲)

(۱۰) ساقی(اوبو ورکونکی) ته په آخر کی چښل. (ترمذی)

# دلباس سنتونه

(۱) درسول اللّٰه ﷺ سپین رنګ ته کر خوښ ؤو.

(شمائل ترمذی ص۵، ابنِ ماجه ص۲۵۵)

(۲) که قمیص، کورتی یا صدری وغیره اغوندې نواول راسته لاس په لستونی واغونده بیا چپه لاس همدا رنګه دپای جامی او پرتوګ دپاره اول راسته پښه بیا چپه پښه. (ترمذی ص۳۰٦ ج۱)

(۳) پای جامه، پرتوګ یا لنګ تربجلکو لوړ ساته، تربجلکو لاندی په ځړولو سره اللّٰه تعالیٰ خوابدی کیږی. رسول اللّٰه ﷺ وفرمایل پرتوګ تربجلکو لاندی ځړونکی باندی به اللّٰه تعالیٰ درحمت نظر ونه کړی. (بخاری ص۸٦۱ ج۲ ،مسلم ص۱۹٤ ج۲)

(٤) نوی کالی چی واغوندې دا دعاء ووایه

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ کَسَانِیْ هٰذَا الثَّوْبَ وَرَزَقَنِیْهِ مِنْ غَیْرِ حَوْلٍ مِّنِّیْ وَلَاقُوَّةٍ** (ابوداؤدص۲۰۲ ج۲)

**ترجمه:** ټول صفتونه د اللّٰه دپاره دی چاچی دا کالی په ما واغوسته او راپه نصیب ئې کړه بیله زما د کوښښ او قوت څخه.

(۵) ترلنګوټې لاندی خولی پر سره ول سنت ده. (مرقات ج۸ص۲۱۵)

٦ درسول الله ﷺ کُرته(ترخځی قمیص) ډیر خوښ وو.
(ترمذی ص٣٠٦ ج١، ابوداؤدص٢٠٢ ج٢، ابنِ ماجه ص٢٥٥،٢٥٦)

٧ توره لنګوټه ترل سنت ده.شمله را ايله کول هم سنت ده.
(نسائی ص٢٩٩ ج٢)

٨ رخچینه(خولی) پر سره ول سنت ده. (مرقات ج ٨ص٢١٥)

٩ که قمیص یا کُرته وغیره کښل وی نواول چپه لاس دلستونی شخه وکاږه بیا راسته لاس، همدارنګه دپرتوګ یا پاجامی د کښلو په وخت اول چپه پښه راو کاږه بیا راسته.
(ترمذی ص٣٠٦ ج١، مشکوٰة ص٣٧٤ ج٢)

١٠ څپلکه اول په راسته پښه په پښو که بیا په چپه پښه.
(بخاری ص٨٧٠ ج٢، مسلم ص١٩٧ ج٢)

١١ څپلکی د کښلو په وخت اول ئې دچپې پښې څخه و کاږه بیا دراسته پښې څخه. (بخاری ص٨٧٠ ج٢، مسلم ص١٩٧ ج٢)

## د وریښتانو سنتونه

١ دنبی کریم ﷺ دسر مبارك د وریښتانو اوږدوالی دغوږو تر نیمی پوری اودبل روایت په مطابق ترغوږو پوری او د یوبل روایت په مطابق دغوږو تر نرمی پوری وو، هغه ته دنږدې روایات هم سته.
(شمائل ترمذی ص٣، غنية الطالبين ص٤٣،٤٤، مرقات ص٢٧٨،٢٧٩ ج٨)

(٢) پر ټول سر ویښتان پریښوول ترغوږو تر نرمی پوری یا ترهغه یوڅه اندازه کښته پریښول سنت دی او ټول سرخریل هم سنت دی او که ئې کوچنی کوي نو دټول سر ویښتان دهری خوا څخه برابر کوچنی کول روا دی مګر دمخ خوا غټ پریښول او دځټ خوا کوچنی کول کوم ته چی انګریزی ویښتان ویل کیږی روا نه دی، همدارنګه دسر یوڅه خوا خریل او یو څه خوا پریښول هم روا نه دی، اللّٰه تعالیٰ دی هرمسلمان ددې څخه وساتی. (بهشتی زیور حصّه۱۱صفحه۱۱۵)

(٣) دږیری دغټولو او دبریتو کوچنی کولو په باره کی په حدیثو کی حکم راغلی دی (بخاری ومسلم) ږیره خریل یا تر یوه مټ کوچنی کول حرامه ده. (بهشتی زیورحصّه۱۱صفحه۱۱۵)

اللّٰه تعالیٰ دی هر مسلمان ددې څخه وساتی، یومټ ږیره پریښول واجب ده او دیوه مټ اندازه دسنت څخه ثابته ده.

(بخاری ص۵۷۵ج۲، مسلم ص۱۲۹ج۱)

(۴) دبریتو په کوچنی کولو کی مبالغه(ښې کوچنی) کول سنت دی. دغټو بریتو پر پریښولو باندی په حدیثو کی سخت وعید (عذاب) راغلی دی. (بهشتی زیورحصّه۱۱صفحه۱۱۵)

(۵) تر نامه لاندی، بغل او دبریتو ویښتان او نوکان وغیره په اخیستولو سره باید پاك صاف واوسیږی. که څلویښت ورځی باندی تیری سی او صفائی ونه کړی نو به ګناهګاره وی. (بخاری ص۸۷۵ج۲)

٦ وریښتان پریوللل، غوړول او ږمونځول سنت دی، مګر که ضرورت نه وی نو په مابین کی یو ورځ او دوې باید ناغه پکښی وسی. (اوجزالمسالك ص٢٦٨ ج١٤)

٧ وریښتان چی ږمونځه وې نو اول ئې دراسته خوا څخه شروع که. (بهشتی زیور حصّه ١١ صفحه ١١٦، بخاری ص١٦ ج١)

٨ د ږمونځولو په وخت یا دضرورت په وخت کی کله چی هم هینداره(آئینه) ته وګورې نودا دعاء وکه.

**اَللّٰهُمَّ اَنْتَ حَسَّنْتَ خَلْقِیْ فَحَسِّنْ خُلُقِیْ ؂**

**ترجمه:** اې اللّٰه! څنګه چی تا زما صورت ښه جوړ کړی دی زما اخلاق هم را ښه کړې. (مشکوٰة ص٣٨١ ج٢، حصن حصین ص٣٤٦)

## ناجوړی علاج اودعیادت سنتونه

١ په ناجوړی کی دوا او علاج کول سنت دی علاج دی کوی مګر د ناجوړی څخه په شفاء کی دی نظر پر اللّٰه تعالیٰ وساتی.(نووی شرح مسلم ص٢٢٥ ج٢)

٢ په کلونجی او عسلو سره علاج کول سنت دی. درسول اللّٰه ﷺ ارشاد دی چی اللّٰه تعالیٰ په دې دواړو شیانو کی شفاء ایښې ده. ددې دواړو په صفت کی ډیر حدیثونه راغلی دی.(بخاری ص٨٤٨ ج٢)

٣ دعلاج په وخت کی دتاوان رسوونکی شیانو څخه باید پرهیز وسی. (بخاری ص٨٤٣ ج٢)

(۴) دخپل مریض ورور دپوښتنی دپاره ورتلل سنت دی. درسول ﷺ ارشاد دی **عُوۡدُوا الۡمَرِيۡضَ.** (بخاری) دمریض عیادت (پوښتنه) وکی او دحضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی

**مَرِضۡتُ مَرَضًا فَاَتَانِی النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَعُوۡدُنِیۡ** الخ

فرمائی چی زه ناجوړه سوم نو رسول اللّٰه ﷺ زما دعیادت (پوښتنی) دپاره تشریف راوړی. (بخاری ص۸٤٤ ج۲)

(۵) دپوښتنی وروسته ژر بیرته راتلل سنت دی. (مشکوٰة) داسی نه وی چی ستا دډیری ناستی په سبب مریض په عذاب او غمزده سی یا دکوروالاؤ په کار کی خلل رانه سی.

(مشکوٰة ص ۱۳۸ ج۱)

(۶) دمریض هر رقم تسلّی کول سنت ده مثلاً هغه ته دی دا ووایی چی انشاء اللّٰه ته به ژرجوړ سي. خدای تعالٰی ډیر قدرت والا دی، دخوف یا دبیری پیدا کولو خبره دی مریض ته نه کوی.

(مشکوٰة ص ۱۳۷ ج۱)

(۷) کله چی دیو مریض عیادت(پوښتنه)وکړ نو هغه ته داسی induction ووایه

**لَابَأۡسَ طَهُوۡرٌ اِنۡ شَآءَ اللّٰهُ ٥**

**ترجمه:** هیڅ پروانسته انشاء اللّٰه دا ناجوړی دګناهو څخه پاکونکی ده. (بخاری ص۸٤٤ ج۲)

بیا دی دهغه دشفاء دپاره اووه واره دا دعاء ووایی

**اَسْئَلُ اللّٰهَ الْعَظِيْمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَنْ يَّشْفِيَکَ** ٥

(بخاری ص٨٤٥ج٢)

**ترجمه:** زه د اللّٰه تعالیٰ څخه سوال کوم چی عظیم دی او دعرش عظیم رب دی چی تا ته شفاء درکړی.

٨ رسول اللّٰه ﷺ ارشاد فرمایلی دی چی اووه واره ددې په ویلو سره به مریض ته شفاء نصیب سی، هو که دهغه مرګ راغلی وی نو بله خبره ده. (مشکوٰة ص١٣٥ج٢)

## دسفر سنتونه

١ ترڅو پوری چی کیدای سی په سفرکی دی کم ازکم دوه کسان ولاړسی، یوازی سړی دی سفر نه کوی هو په ضرورت او مجبوری کی هیڅ پرواه نه لری چی یوازی سړی سفر وکی. (فتح الباری ص٥٣ج٦)

٢ دسواری دپاره چی په رکاب کی پښنه کښنیږدې نو **بِسْمِ اللّٰه** ووایه. (ترمذی ص١٨٢ج٢)

٣ پرسواری باندی چی ښه سم کښنیني نو درې واره **اَللّٰهُ اَکْبَر** ووایه بیا دا دعاء ووایه

**سُبْحَانَ الَّذِیْ سَخَّرَلَنَا هٰذَا وَمَا کُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ**
**وَاِنَّآ اِلٰی رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ** ط (مسلم وترمذی)

ترجمه: پاك دى هغه ذات چاچى زموږ تابع كړه دا سوارى او نسواى موږ دا قابو كولاى او بې شكه موږ دخپل رب وخوا ته تلوونكى يو. (مسلم ص٤٣٤ ج١، ترمذى ص١٨٣ ج٢)

(۴) بيا دا دعاء ووايه

**اَللّٰهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَاسَفَرَنَاهٰذَاوَاطْوِعَنَّابُعْدَهٗ.**
**اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الصَّاحِبُ فِى السَّفَرِوَالْخَلِيْفَةُ فِى الْاَهْلِ.**
**اَللّٰهُمَّ اِنِّىْٓ اَعُوْذُبِکَ مِنْ وَّعْثَاءِ السَّفَرِوَكَاٰبَةِالْمَنْظَرِ وَسُوْٓءِالْمُنْقَلَبِ فِى الْمَالِ وَالْاَهْلِ وَالْوَلَدِ.** (مسلم، حصن حصين)

ترجمه: اې الله! آسانه كى پرموږ باندى دا سفراو طې كې پرموږ باندى اوږدوالى ددې اې الله هم ته مو دسفر رفيق(مددګاره) يى او خبر كوونكى يى په كور بار كى.ياالله زه پناه غواړم ستا دسفر دتكليف څخه او د بدحال دليدو څخه او په بيرته راتګ سره دبدحال دليدو څخه په مال كى او په كور كى او په بچيانو كى. (مسلم ص٤٣٤ ج١،حصن حصين ص٢٧٩)

(۵) كه په سفر كى دقيام ضرورت پيښ سى نو سنت دا دى چى د لارى څخه دې چپ قيام وكى، په لاره كى دى قيام نه كوى چى دتلونكو راتلونكو لار بنده سى او هغو ته تكليف وى.(مسلم ص١٤٤ ج٢)

(٦) په سفر كى كله چى سوارى لوړى ته خيژى نو **اَللّٰهُ اَكْبَرُ** دى وائى.

(بخارى ص٤٢٠ ج١)

٧ کله چی سواری پر کښېنته ورسی نو **سُبْحَانَ اللّٰه** دی وائی.

(بخاری ص ٤٢٠ ج١)

**فائده:** په مرقاة کی لکلی دی چی دا سنت دسفر دی مګر په خپلو کورو کی یا دمسجد وه زینوته دختلو په وخت کی دی راسته ښېنه ورمخته کی او **اَللّٰهُ اَكْبَرُ** دی ووائي که څه هم یوه زینه وی او د راکښېنته کیدو په وخت کی دی چپه ښېنه رامخته کی او **سُبْحَانَ اللّٰه** دی ووائي که څه هم معمولی کښېنته وی نو دسنت دثواب امید سته او ملّا علی قاری لوړی ته دختلو په وخت د **اَللّٰهُ اَكْبَرُ** دویلو راز دا بیان کړیدی چی پر لوړه باندی که څه هم په ظاهره موږ لوړ معلومیږو مګر ای اللّٰه! موږ لوړ نه یو لوړوالی اوغتهوالی فقط ستا دپاره خاص دی او لاندی دکښېنته کیدو په وخت **سُبْحَانَ اللّٰه** ویل پدې دی چی موږ کښېنته یو ای اللّٰه! ته دکښېنتوالی څخه پاك ئې.

٨ کوم ښار یا کلی ته چی دی د ورتګ نیت وی کله چی هغه ته ورداخیلیږی نو درې واره دا دعاء ووایه

٩ **اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْهَا** ٥ (مرقات ص٣٣٩ ج٥)

**ترجمه:** ای اللّٰه! برکت راکړې موږ ته په دې ښار کی.

بیا دی دا دعاء ووایه. (مرقات ص٣٣٩ ج٥)

**اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنَاجَنَاهَا وَحَبِّبْنَآاِلٰى اَهْلِهَاوَحَبِّبْ صَالِحِى اَهْلِهَآاِلَيْنَا** ٥

**ترجمه:** یا اللّٰه! رانصیب کړې موږ ته میوې ددې ښار او ګران کړې موږ ددې ښار پرخلګو او محبت راکړې موږ ته ددې ښار دنیکو خلګو. (حصن حصین)

(۱۰) درسول اللّٰه ﷺ ارشاد دی چی کله دسفر ضرورت پوره سی نو کورته دی راسی، په سفر کی بیله ضرورته پاتیدل ښه نه دی.

( حصن حصین ص۲۸٤)

(۱۱) دلیری سفر څخه دډیری ورځو وروسته که په نیمه شپه کی کورته راسی نوهغه وخت دی کور ته نه ځی بلکه ښه دادی چی سهار کورته ولاړسی. (بخاری ص٤۲۱ ج۱، مشکوٰة ص۳۳۹)

**فائده:** اوکه کوروالا ستا دناوختته په راتګ خبر وی او هغه ستا په انتظار هم وی نو هغه وخت کور ته په داخیلدو کی هیڅ پرواه نسته. (مرقات ص ٤۱٦، ۲۱۷ ج۷)

پردې سنتو طریقو باندی په عمل کولو سره به ددین او دنیا ښادی حاصله سی.

(۱۲) په سفرکی سپی او ګهنګرو(د رقص زنګولې) دځان سره دساتلو ممانعت راغلی دی.(مسلم ص۲۰۲ ج۲) ځکه چی ددې په خاطرشیطان په شا ورپسې سی او دسفربرکت دمینځه څخه ځی. (مشکوٰة ص۳۳۸ ج۲)

(۱۳) دسفر څخه دراتلونکی دپاره دا سنت دی چی کورته د

داخلیدو ترمخه مسجد ته ولاړسی دوه رکعته لمونځ وکړی.

(مشکوٰة ص۳۳۹ ج۲، مسلم ص۲٤۸ ج۱)

۱۴ کله چی دسفر څخه بیرته راسی نو دا دعا دی ووائی

آئِبُوْنَ تَآئِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ ۝

ترجمه: موږ راتلوونکی یو، توبه کوونکی یو، دالله تعالیٰ بندګی کوونکی یو، دخپل رب حمد کوونکی یو.

(مُسلم ص٤۳٥ ج۱، ترمذی ص۱۸۲ ج۲)

## دنکاح سنتونه

۱ مسنون(برکت والا) نکاح هغه ده چی ساده وی په هغه کی هنګامه یا ډیرتکلّفات او دجهیز او دداسی نوروشیانوجنجال پکښنی نه وی. (مشکوٰة ص۲٦۸ ج۲)

۲ دنکاح دپاره نیك اوصالح سړی پیدا کول او کوزده یا پیغام ورلیږل سنت دی. (مشکوٰة ص۲٦۷ ج۲)

۳ دجمعې په ورځ په مسجدکی او دشوال په میاشت کی نکاح کول خوښه سوې او سنت ده. (مرقات ص ۲۷٦ ج٦)

۴ نکاح مشهوره کول سنت ده . (مشکوٰة ص۲۷۲ ج۲)

۵ تر وسه پوری مهر مقررول سنت دی. (مشکوٰة ص ۲۷۷ ج۲)

۶ د واده په اوله شپه کله چی دمیني سره یوازی سی نودی دمیني تندی ونیسی او دا دعا دی ووائی

اَللّٰهُمَّ اِنِّیۡٓ اَسۡئَلُکَ خَيۡرَهَاوَخَيۡرَمَاجَبَلۡتَهَاعَلَيۡهِ وَاَعُوۡذُبِکَ مِنۡ شَرِّهَا وَشَرِّمَاجَبَلۡتَهَاعَلَيۡهِ ٥

**ترجمه:** اې اللّٰه! زه ستا څخه ددې دخير او ددې دعادتو او اخلاقو دخير سوال کوم او ددې د اخلاقو او عادتو دشرڅخه ستا پناه غواړم. (ابوداؤد ص ۲۹۳ ج ۱، ابنِ ماجه ص ۱۳۸)

۷ کله چې دميني سره دصحبت اراده وکی نو دا دعا دی ووائی بيا که اولاد وسی نو پرهغه باندی شيطان نسی مُسلّط کيدای اوهغه تاوان نسی ورسولای. دعا داده

بِسۡمِ اللّٰهِ. اَللّٰهُمَّ جَنِّبۡنَاالشَّيۡطٰنَ وَجَنِّبِ الشَّيۡطٰنَ مَارَزَقۡتَنَا ٥

**ترجمه:** زه داللّٰه نوم په اخستوسره دا کار کوم. اې اللّٰه! موږ دشيطان څخه وساتې او کوم اولاد چی ته موږ ته راکې هغه هم دشيطان څخه ليری وساتې. ددې دعا په ويلوسره چی کوم اولاد وسی هغه ته به هيڅکله شيطان ضرر نسی ورسولای.

(بخاری ص ۷۷۶ ج ۲، ابوداؤد ص ۲۹۳ ج ۱، ابنِ ماجه ص ۱۳۸)

# وليمه

۱ د واده شپه دتيرولو وروسته په خپل قريبانو، دوستانو، خپلوانو او مسکينانو باندی د وليمې ډوډی خوړل سنت ده. د وليمې دپاره ضروری نه ده چی په غټه پيمانه ډوډی تياره کړی او په وېخوری، لږ ډوډی دی دخپل وسه پوری تياره کړی په

دوستانو، عزیزانو او نورو باندی لږلږ خوړل هم دسنت د اداکولو دپاره کافی ده ، ډیره بده ولیمه هغه ده چی مالدار او دنیاداره خلګ خو راوغوښتل سی مګر غریب، مسکین، محتاجه او دینداره خلګ ځینی وشړل سی. (بخاری ص۷۷۸ ج۲)

**شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيْمَةِ يُدْعٰى لَهَا الْاَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَآءُ**

دداسی بدی ولیمې څخه باید ځان وساتل سی. په ولیمه کی دسنت د ادا کولو نیت وکه. دینداره غریب او محتاجه خلګ راوغواړه، په مالدارانو کی هم چی هر یودی زړه غواړی راوئې غواړه مګر غریبان مه پوری وهه. کومه ولیمه چی دنامه او د ریا دپاره یا دخلګو دتعریف دپاره وسی هغه هیڅ ثواب نه لری بلکه دالله تعالٰی دناراضه کیدو او قهر اندیښنه سته.

## دکوچنی پیدا کیدو دوخت سنتونه

(۱) کله چی کوچنی پیدا سی نودهغه په راسته غوږ کی اذان او په چپه غوږ کی تکبیر ویل. (ترمذی ص۲۷۸ ج۱، علیکم بسنتی ص۵۵)

(۲) کله چی کوچنی د اوو شپو سی نو دهغه ښه نوم ایښول.

(ابوداؤد ص۳۶ ج۲)

(۳) اوومه ورځ عقیقه کول که په اوومه ورځ عقیقه ونه کړه سی نوپه څورلسمه ورځ که نې په یوویشتمه ورځ دې وکی.

(ابوداؤد ص ۳۶ ج۲)

۴ د کوچنی دسر خریـیلو سره دوریښتانو دوزن په اندازه سپن زرخیرات ول. (ترمذی ص۲۷۸ ج۱)

۵ دسرخریـیلو وروسته د کوچنی پر سر زعفران وهل.(ابوداؤد ص۳۷ ج۲)

۶ دهلك په عقیقه کی دوه وزګړی یا دوې بوزې او د انجلی دعقیقې دپاره یو وزګړی یا بوزه حلالول.

(ترمذی ص۲۷۸ ج۱، ابن ِماجه ص ۲۲۸)

۷ دعقیقې غوښی اومې یا پخ سوی ویشل کیدلای سی.

(بهشتی زیور حصّه ۳ ص۴۳، الفقة السلامی ص۲۷۴۹ ج۴)

۸ دعقیقې غوښی انا ګانی ، نیکه ګان ټوله ئې خوړلای سی.

(بهشتی زیور حصّه ۳ ص۴۳، الفقة السلامی ص۲۷۴۹ ج۴)

۹ په یو بزرګ باندی خورما ژوول د کوچنی په خوله کې اوراچول یا ئې په ځتهل او دعا په کول.

(بخاری ص ۸۲۰ ج۲، مسلم ص۲۰۹ ج۲، مشکوٰة ص ۳۶۲ ج۲)

۱۰ کله چی کوچنی د اوو کالو سی نو هغه ته دلمانځه او ددین نوری خبری ورزده کول.(مشکوٰة ص۵۸ ج۱)

۱۱ کله چی کوچنی دلسو کالو سی نو په سختی سره په خوشکه لمونځ په کول او که ضرورت پیښ سی نو سزا ورکول چی دلمانځه عادی سی. (مشکوٰة ص ۵۸ ج۱)

**پاملرنه:** نن سبا په نازورکولو سره کوچنیان خرابوی او په داسی ویلو

سره خپل ځان ته اطمنان ورکوی چی لوی سی کوچنی سمیږی. یاد وساتی چی که بنیاد کوږ سی نو پرهغه باندی جوړیدونکی تعمیر به هم کوږوی. پدې خاطر د اوله سره ښخه اولاد باید په ښه اخلاقو باندی ښائسته سی که نې وروسته به ارمان کوی.

## دمرګ او دهغه وروسته سنتونه

(۱) کله چیدا معلومه سی چی دمرګ وخت نژدې دی نو هغه وخت چی کوم خلګ هلته موجود وی دهغه مخ دی دقبلې وخواته وګرځوی او د کلمی تلقین دی ورته وکړی یعنی کلمه دی وائی.

(المستدرك للحاکم ص۳۵۳ ج۱)

(۲) کله چی مرګ نژدې معلوم سی نو دا دعا دی ووائی

**اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وَارْحَمْنِیْ وَاَلْحِقْنِیْ بِالرَّفِیْقِ الْاَعْلٰی ٥**

ترجمه: اې اللّٰه! ما وبخښې او پرما باندی رحم وکې اوما ولوړو ملګروته وررسوې. (ترمذی ص۱۹۲ ج۱، ابوداؤد ص۸۸ ج۲)

(۳) کله چی دنفس ختلوآثار محسوس سی نو دا دعا دی ووائی

**اَللّٰهُمَ اَعِنِّیْ عَلٰی غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَسَکَرَاتِ الْمَوْتِ ٥**

ترجمه: اې اللّٰه! دمرګ دسختیو پر وخت باندی زما مدد وکړی.

(بخاری ص۹۳۹ ج۲ /ص۸۴۷ ج۲، مسلم ص۲۸۶ ج۲، ترمذی ص۱۸۷ ج۲)

(۴) کله چی مرګ واقع سی نو اهلِ تعلق دی دا دعا ووائی

**اِنَّالِلّٰهِ وَاِنَّآاِلَيۡهِ رَاجِعُوۡنَ ط اَللّٰهُمَّ اۡجُرۡنِیۡ فِیۡ مُصِيۡبَتِیۡ وَاخۡلُفۡ لِیۡ خَيۡرًامِّنۡهَاo**

**ترجمه:** بې شکه موږ دالله دپاره یو او موږ دالله وطرف ته تلونکی یو، اې الله! ماته زما په غم کی اجر راکړې او ددې په عوض کی ماته تردې ښه بدل راکړې. (ترمذی ص۱۹۲ج۱)

۵ دروح دوتلو وروسته دی دمړی سترګی بندی کړی.

(مسلم ص۳۰۰ج۱، هدایه ص۱۸۹ج۱)

۶ څوك چی مړی پرتخته باندی د ایښولو دپاره پورته کی یا جنازه پورته کی نو **بِسۡمِ اللّٰه** دی ووائی.

(اِبن ابی شبیة ص٤٨٥ج۲)

۷ دمړی په ښخولو کی تلوار کول سنت دی. (اَبُوداؤدص۹۷ج۲)

۸ کله چی مړی په قبر کی ایږدې نو دا دعا ووایه

**بِسۡمِ اللّٰهِ وَعَلٰی مِلَّةِ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ o**

(مشکوٰة ص١٤٨ج١)

۹ مړی په قبر کی پر راسته بغل باندی باید داسی کښیښول سی چی پوره سینه ئې دکعبې شریفی وخوا ته وی او شا ئې دقبر ددیواله سره وموښلی. نن‌سبا خلګ فقط مخ ئې دکعبې شریفی وخواته کی او ستونی ستخ ئې پری باسی چی سینه ئې دآسمان

وخواته وی، دا بالکل دسنت خلاف دی. (طحطاوی ص۲۵۸ ج۲)

(۱۰) دمړی خپلوانو یعنی کوروالاؤ ته ډوډی ورکول سنت ده، دا ډوډی وټوله خاندان یا خپلوانو ته خوړل روا نه ده، دنامه او ریا دپاره داسی کول روا نه دی چی څه موجود وی ورديې کړی.

(ترمذی ص۱۹۵ ج۱، ابنِ ماجه ص۱۱۵)

(۱۱) کله چی به دمړی دښخیدو څخه حضرت محمدﷺ فارغه سو نوخپله به ئې هم او نورو ته به ئې وفرمایله چی دخپل ورورد پاره استغفار وکی او دثابت قدم پاته کیدو دعا وکی چی اللّٰه تعالٰی دی دمنکر نکیر په جواب کی ثابت قدم وساتی.

(ابوداؤد ص۱۰۳ ج۲، مستدرك ص۵۲۶ ج۱)

(۱۲) دښخولو وروسته دمړی دپاره دقبلې وخواته مخ په کولو سره دعا کول سنت ده، مګر دجنازې دلمانځه وروسته دعا کول لکه څنګه چی نن سبا رواج سوی ده روا نه ده.

(مرقات ص٦٤ ج٤، البحرالرائق ص۱۸۳ ج۲)

## دبیدیدو سنتونه

(۱) دنبی کریمﷺ څخه پردې ټولو شیانو باندی استراحت کول کول ثابت دی.

(۱) بوریا (۲) چټائی (۳) دټوکر فرش (۴) مځکه

(۵) تخت (۶) چارپائی (۷) چرم او پوست (زادالمعاد ص۱۰۸ ج۱)

(۲) په اوداسه بیدیدل سنت دی. (ابوداؤدص ۳۳۱ ج۲)

(۳) کله چی خپل بستر ته راسي نو هغه دټوکره په پلو سره دري واره ټك وهه.

(مسلم ص۳٤۹ج۲، ابوداؤدص۳۳۲ ج۲، ترمذی ص۱۷۷ج ۲، ابنِ ماجه ص۲۷٦ )

(۴) دبیدیدو ترمخه په بِسۡمِ اللّٰه ویلو سره دی لاندی ذکر سوی کارونه وکی.

(۱) دروازه دی بنده کی (۲) څراغ دی مړ کی

(۳) د ژی خوله دی وتړی (۴) دلوښو سر دی پټ کی

(مسلم ص۱۷۰ج۲)

(۵) دماخستن ترلمانځه وروسته دکیسو او نقلو ممانعت دی، دلمانځه وروسته باید بیده سی، هو د وعظ او نصیحت دپاره یا دروزی، معاش دپاره دناستی اجازه سته. (مرقات ص۲۷۵ج۲)

(٦) دبیدیدو پر وخت په هره سترګه کی دري دري سلائی رانجه (رانجی) لګول دښځی او نارینه دواړو دپاره سنت دی.

(الترغیب والترهیب ص۸۹ج۳)

چی کله دی دبیدیدو نیت وی نو دقرآن شریف آیاتونه او سورتونه ووایه. مثلاً الحمدشریف، آیة الکُرسی، سورهٔ ملك (تَبَارَكَ الَّذِیۡ)، څلور سره قُل او درود شریف. که چیری ډیرنه سې ویلای نو یو یا دوه سورته ضرور ووایه چی دا ددنیا او آخرت دکامیابی او نیك

بختی بنیاد دی. (مسنداحمد ص۳۵۸ ج۱ ، ابنِ ماجه ص۲۵۸)

۷ دبیدیدو ترمخه دی تسبیح فاطمه وویل سی یعنی سُبحان اللّٰه۳۳ واره الحمدللّٰه۳۳ واره اواللّٰه اکبر۳٤ واره ووایی.

(بخاری ص۹۳۵ ج۲، مسلم ص۳۵۰ ج۲، ابوداؤدص۳۳٤ ج۲، ترمذی ص۱۷۸ ج ۲)

۸ دبیدیدو پروخت پر راسته بغل مخ دقبلې وخوا ته بیدیدل سنت دی. (شمائِل ترمذی ، ابوداؤدجلد۲صفحه۳۳۲)

پرمخی پریوتل داسی چی سینه دمځکه وخواته اوشا دآسمان طرف ته وی منع دی. (ترمذی جلد۲ ص۱۰۵ ، ابوداؤد جلد۲ ص۳۳۱)

۹ پر بستر چی پریوزې دا دعا ووایه

**بِاسْمِکَ رَبِّیْ وَضَعْتُ جَنْبِیْ وَبِکَ اَرْفَعُهٗ اِنْ اَمْسَکْتَ نَفْسِیْ فَاغْفِرْلَهَا وَاِنْ اَرْسَلْتَهَافَاحْفَظْهَابِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَکَ الصَّالِحِیْنَo**

(بخاری جلد۲ ص ۹۳۵، مسلم جلد۲ ص ۳٤۹، ترمذی جلد۲ ص۱۷۷)

۱۰ بیا دی دا دعا ووائی

**اَللّٰهُمَّ بِاسْمِکَ اَمُوْتُ وَاَحْیٰی o** (بخاری، مسلم بحواله بالا)

۱۱ دبیدیدو ترمخه دی درې واره دغه استغفار هم ووائی

**اَسْتَغْفِرُاللّٰهَ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّاهُوَالْحَیُّ الْقَیُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَیْهِ o**

(ترمذی ص۱۷۷ جلد۲)

۱۲ که چیری په خوب کی یو دبیری خبره ووینې او سترګی

دی خلاصی سی نو درې واره چپه خواته توکه او **اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ** درې واره ووايه او پر بل اړخ بیده سه.

(مسلم کتاب الرؤیا ص ۲٤۱ ج۲)

## دمعاشرت څوسنتونه

(۱) سلام کول دمسلمانانو دپاره ډیر لوی سنت دی. رسول اللّٰه ﷺ ددې ډیرتاکید فرمایلی‌دی، ددې څخه یودبله محبت ډیریږی. هرمسلمان ته باید سلام وسی که ئې پیژنی او که ئې نه پیژنی، ځکه چی سلام اسلامی حق دی چی دچا پر پیژندنی یا شناخت باندی موقوف نه دی. (بخاری ص۹۲۱ ج۲)

(۲) دبخاری او د مسلم په حدیث کی دی چی رسول اللّٰه ﷺ دکوچنیانو سره تیر سو نو رسول اللّٰه ﷺ هغوته سلام وکی پدې خاطر کوچنیانوته هم سلام کول سنت دی.

(بخاری ص۹۲۱ ج۲، مسلم ص ۲۱٤ ج۲)

(۳) دسلام کولو سنت طریقه داده چی په ژبه سره **اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ** ووائی په لاس یا په سر سره یا دګوتی په اشاره سره سلام کول یا دهغه جواب ورکول دسنت خلاف دی، که لیری والی وی نو په ژبه او لاس دواړو سره دی سلام وکی.

(مشکوٰة ص۳۹۹ ج۲، ترمذی ص۹۹ ج۲)

(۴) که دیومسلمان ورور سره ملاقات وسی نو دسلام وروسته دلاس روغبړ کول سنت دی. ښځه دښځی سره دلاس روغبړ کولای سی. (مشکوٰة ص ٤٠١ ج ٢)

(۵) که یومجلس ته ورسې نوچیری چی موقع پیدا سی او ځای در ورسیږی کښینه نور ولاړول خپله کښینستل دګناه خبره او مکروه ده. (بخاری ص ٩٢٧ ج ٢، مسلم ص ٢١٧ ج ٢)

(۶) که یو څوك ستا دلیدو دپاره راسی نوته دخپل ځای څخه لږ وښوره، که څه هم په مجلس کی ځای وی، دا هم سنت دی او په دی کی دهغه راتلونکی دپاره اکرام دی.

(زادالطالبین ص ٥٦، شعب الایمان ص ٤٦٨ ج ٢)

(۷) که یوځای صرف درې کسان وی نو یو پریښول او دبل سره په غوږ کی دخبری کولو اجازه نسته چی ناحقه په ناحقه به دهغه زړه دشك په سبب رنجیده سی او مسلمان ورو رنجیده کول ډیره لوګناه ده. (مسلم ص ٢١٩ ج ٢)

(۸) که دیوچا کورته ورتلل وی نو دهغه څخه د اجازه اخستلو وروسته باید داخل سی. (مشکوٰة ص ٤٠١ ج ٢)

(۹) که اړږمی راسی نو سنت دا دی چی دهغه د راګرزولو تروسه کوښښ وکی او که خوله دکوښښ باوجود بنده ونه ساتی نو دچپه لاس شا دی پر خوله کښیږدی او دهاها آواز دی نه راکاږی چی دا په حدیث کی منع دی. (بخاری ص ٩١٩ ج ٢، مسلم

١٠ که دیو چا ښه نوم واورې نو هغه دخپل مقصد دپاره نیك فال سنجول سنت دی اوپه هغه خوشحاله کیدل هم سنت دی. دبدفال اخیستل سخت منع سوی دی لکه په لار کی یو سړی ته تریچی(پرنچل) راغلی نو دا سنجول چی کار به نه کیږی یا که کارګه بږغ وکی ،یا ئې بیزو ولیدل یا بم بږغ وکی نو ددې څخه د آفت دراتللو ګمان کول سخته نادانی او بلکل بې اصل او غلطه او دګمراهی عقیده ده همدا رنګه یو څوك ناسی بلل یا یوه ورځ ناسی بلل ډیره بده ده. (مرقاةص٢٠٦ج٩)

پرسنت باندی په عمل کولو سره بنده دالله تعالیٰ محبوب ګرځی نو ځکه په اهتمام سره باید پردې عمل وسی.

## دوسوسو پروخت سنتونه

☆ دکفر یا دګناه دوسوسې پروخت دا ویل سنت دی **اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْم** دی ووایی او **اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ**o (مرقاةص١٣٧ج١)

## سنت فکر

☆ دوهم سنت دادی چی دالله تعالیٰ په ذات کی دی فکرنه کوی، بلکه دالله تعالیٰ په مخلوقاتو کی دی فکرکوی

**كَمَافِى الْحَدِيْثِ: تَفَكَّرُوْا فِى خَلْقِ اللّٰهِ وَلَا تَتَفَكَّرُوْا فِى اللّٰهِ فَاِنَّكُمْ لَمْ تَقْدِرُوْا قَدْرَهٗ○**

(الكامل لابن عدى ص٣٨٥ ج٨، الجامع الصغير ص٦٩٠ ج٢، مجمع الزوائد ص٢٥٤ ج١، طبرانى اوسط ص٣٨٣ ج ٤)

☆ دفکر تعلق دخلق سره دی، دخالق سره نه **كَمَاقَالَ تَعَالٰى شَانُهٗ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ○** (بيان القرآن ص٢٥٧ ج١)

## يو څو موهم ديني تعليمات

(١) چاچی ویل ومنل درسول اللّٰه ﷺ هغه ویل ومنل دالله تعالٰی.

( سورة نمبر٤ آيت نمبر٨٠)

(٢) هغه کس زموږ دجماعت څخه وتلی دی څوك چی زموږ پرکشرانو باندی رحم نه کوی او زموږ دمشرانو عزت نه کوی او دنیك کار دکولو نصیحت نه کوی او دبدکار څخه منع نه کوی. (ترمذی ص١٤ ج٢)

(٣) هغه کس ملعون دی څوك چی یو مسلمان ورور ته مالی یا جانی تاوان رسوی یا ئې خطاباسی. (ترمذی ص١٥ ج٢)

(٤) په دنیا کی داسی اوسه لکه مسافر چی اوسی.(بخاری ص٩٤٩ ج ٢)

(٥) مسلمان هغه دی چی دژبی او لاس څخه ئې نور مسلمانان محفوظ وی. (بخاری ص٩٦٠ ج٢)

٦ دمور او پلار د زهیرولو(آزرده کولو) وبال په دنیا کی هم را ځی.

(مشکوٰة ص ٤٢١ ج٢)

٧ غنیمت ئې وبوله پنځه شیان دپنځه شیانو تر راتګ دمخه

☆ ځوانی دسپن ږیر توب ترمخه. ☆ صحت دناجوړی ترمخه.

☆ مالداری دغریبی ترمخه. ☆ فراغت دمشغولی ترمخه.

☆ ژوند دمرګ ترمخه. (المستدرك ص٣٤١ج٤، شرح السنة ص٢٧٦،٢٧٧ج٧)

# د استخارې لمونځ

دحضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چی رسول اللهﷺ موږ ته په (ضروری) کارو کی داسی د استخارې ښوونه کوله لکه څنګه چی دقرآن شریف سورتونه ئې رایادوله او فرمایل به ئې چی کله په تاسی کی یوڅوك دیو ضروری کار نیت وکی نو دوه رکعته نفل دی وکی بیا دی دا دعا وکی کومه چی مخته راځی.(بخاری ص٩٤٤ ج٢)

او حضرت انس رضي الله عنه ته ئې وفرمایل چی اې انس!کله چی یو کار تا په شك کی واچوی نو دخپل رب څخه استخاره وکه او اووه واره استخاره وکه ، بیا چی په زړه کی دی کومه خبره غالبه سی په هغه کی خیر وبوله. (شامی ص ٥٠٧ ج١)

**فائده:** دخوب لیدل یا یو آواز اوریدل ضروری نه دی. همدا راز په بل چا استخاره کول ثابته نه ده، دبل چا څخه مشوره (صلاح)

اخیستل سنت ده.حدیث شریف دی چی څوك په مشوره (صلاح) سره کار کوی، پښیمانه کیږی نه او څوك چی په استخاره کولو سره کار کوی هغه نامراده کیږی نه. که د استخارې دلمانځه کولو وخت نه وی او ژر په یوکار کی استخاره کول وی نو فقط د استخارې دعا کافی ده اوکه دا دعا د استخارې ئې په یاد نه وی نودا لنډه دعا دی وکړی

**اَللّٰهُمَّ خِرْلِیْ وَاخْتَرْلِیْ ٥** (شامی ص٤٧٠،٤٧١ ج٢)

## د استخارې دعا

**اَللّٰهُمَّ اِنِّیْٓ اَسْتَخِیْرُکَ بِعِلْمِکَ وَاَسْتَقْدِرُکَ بِقُدْرَتِکَ وَاَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِکَ الْعَظِیْمِ فَاِنَّکَ تَقْدِرُ وَلَآ اَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَآ اَعْلَمُ وَاَنْتَ عَلَّامُ الْغُیُوبِ. اَللّٰهُمَّ اِنْ کُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ**(پردغه ځای دی دخپل مطلب خیال وکی)**خَیْرٌ لِّیْ فِیْ دِیْنِیْ وَمَعَاشِیْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِیْ فَاقْدِرْهُ لِیْ وَیَسِّرْهُ لِیْ ثُمَّ بَارِکْ لِیْ فِیْهِ وَاِنْ کُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ** (پردی ځای دی دخپل مطلب خیال وکی) **شَرٌّ لِّیْ فِیْ دِیْنِیْ وَمَعَاشِیْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِیْ فَاصْرِفْهُ عَنِّیْ وَاصْرِفْنِیْ عَنْهُ وَاقْدِرْلِیَ الْخَیْرَ حَیْثُ کَانَ ثُمَّ اَرْضِنِیْ بِهٖ ٥**

(بخاری ص٩٤٤ ج٢، ترمذی١٠٩ ج١، حصن حصین ص٢٦٣)

**ترجمه:** اې اللّٰه! زه ستا څخه خیر طلب کوم ستا دعلم په واسطه سره او قدرت درڅخه غواړم ستا دقدرت په مرسته سره او ستا څخه سوال کوم ستا دفضل. بس بې شکه ته قدرت لرونکی یی او زه عاجز او کمزوره یم اوته پوهیږې، زه نه پوهیږم اوته پټې خبری ښې پیژنې. اې اللّٰه! که دا کار چی ستا په علم کی دی زما دپاره زما ددین، معاش او آخرت دپاره خیر دی نو دا زما دپاره مقدر وګرځوې او آسانه ئې کړې او بیا په دغه کی زما دپاره برکت کښیږدې اوکه ستا په علم کی په دی کی شردی زما ددین او معاش او د آخرت دپاره نو دغه زما څخه لیری که اوما ددغه څخه لیری که او چیری چی خیر وی هغه زما دپاره مقدر که اوما پرهغه باندی راضی که.

ددې دعا وروسته په زړه کی چی کوم خیال غالب سی په هغه کی دی خیر وبولی.

## دحاجت لمونځ

دحضرت عبداللّٰه بن ابی اوفیٰ رضي الله عنه څخه روایت دی چی رسول اللّٰه ﷺ ارشاد وفرمایلی که چا ته داللّٰه تعالیٰ څخه یو ضرورت پیښ سی یا دیو بنده څخه حاجت وی نو اودس دی وکی او په ښه طریقه دی اودس وکی بیا دی دوه رکعته لمونځ وکی بیادی داللّٰه تعالیٰ ثناء وکی او درورد شریف دی

ووائی بیادی دا دعا ووائی

**لَآ اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ. اَلْحَمْدُلِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ. اَللّٰهُمَّ اِنِّيْٓ اَسْئَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَآئِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَّالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ لَّا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهٗ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهٗ وَلَاحَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا اِلَّاقَضَيْتَهَا يَآاَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ.**

(ترمذی ص۱۰۸،۱۰۹ج۱، ابنِ ماجه ص۹۸،۹۹، حاکم ص۳۲ج۱، شامی ص۴۷۳ج۲)

**ترجمه:** نسته ځوك معبود ماسوا دالله تعالیٰ چی حلیم او کریم دی (**اَلْحَلِيْمُ الَّذِيْ لَايُعَجِّلُ بِالْعُقُوْبَةِ. اَلْكَرِيْمُ الَّذِيْ يُعْطِيْ بِدُوْنِ اِسْتِحْقَاقٍ وَّمِنَّةٍ** ٥ حلیم هغه ذات دی چی په سزا ورکولو کی تلوار نه کوی او کریم هغه ذات دی چی بیله استحقاق او بیله قابلیت ئې عطاء کوی) پاك دی الله چی دعرش عظیم رب دی هر قسم تعریف دالله ربّ العالمین دپاره خاص دی.

اې الله! زه سوال کوم ستا درحمت دموجباتو اوستا دمغفرت د ارادو اودهری نیکی دمالِ غنیمت او دهری بدی څخه دسلامتی، زموږ هیڅ ګناه مه پریږده مګر وئې بخښنه او نه زموږ یوغم راوساتی مګر هغه لیری کې او زموږ هر حاجت چی ته په راضی یی هغه راپوره کړه اې ارحمُ الرّاحمین.

دهر دعا ترمخه او وروسته درود شريف ويل ددعا دقبوليت ډيره قوی واسطه ده.علامه شامی رحمة اللّٰه عليه فرمائی چی علامه ابواسحاق الشاطبی رحمة اللّٰه عليه وفرمايل

**اَلصَّلٰوةُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُجَابَةٌ عَلَی الْقَطْعِ o**

يعنی درود شريف حق تعالٰی قبول کړی او دکريم څخه دا نامکنه ده چی يو څه دعا قبوله کړی او يو څه ناقبوله کړی.

**فَاِنَّ الْکَرِيْمَ لَا يَسْتَجِيْبُ بَعْضَ الدُّعَاءِ وَيَرُدُّ بَعْضَهٗ o**

او علامه ابو سليمان دارانی رحمة اللّٰه عليه فرمائی چی تر دعا دمخه او وروسته درودشريف ويونکې دعا قبول سی ځکه چی حق تعالٰی صرف دمخ او وروسته دعاء درود قبول کړی او دمينځ دعا ناقبوله کړی دا دهغه دکرم څخه نامکنه ده.

**فَاِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ الصَّلٰوتَيْنِ وَهُوَاَکْرَمُ مِنْ اَنْ يَّدَعَ مَا بَيْنَهُمَاo**

(شامی ص۲۳۳ ج۲)

احقرعرض کوی کله چی يوتکليف ددنيا يا دآخرت راسی، دبدن مصيبت وی يا که روحانی مصيبت يعنی دګناه تقاضاوی موپه تکليف کړی، دوه رکعته دحاجت لمونځ په ويلو سره لوړ لګل سوی دعا دی ووائې په وار وار هره ورځ دی دزړه څخه دعا

وکی دغیب شخه به دکامیابی اسباب پیدا سی. دهر چا چی زړه غواړی دخپل رب شخه دی دنصرت او کرم انعام حاصل کړی.

# ځینی عادتونه او خصائل دنبوی ﷺ او مُتفرق سنتونه

(۱) سنت: کله چی به رسول اللّٰه ﷺ روان ؤو نو خلګ به دمخ شخه نه ایسته کول کیدل. (زادالمعاد ص۱۱۸ ج۱)

(۲) سنت: رسول اللّٰه ﷺ جائز (روا) کار نه منع کوی. که به یو چا سوال(حاجت) وکی او دهغه دپوره کیدو اراده به ئې وه نو وو به ئې ورته وویل که نې چپ به سو. (زادا لمعاد ص۱۱۸ ج ۱)

(۳) سنت: رسول اللّٰه ﷺ خپل مخ دهیڅ چا شخه نه اړوی ترڅو چی هغه نه وای اړولی او کله چی به یوچا پټه خبره کول غوښتل نوعلیه السلام به غوږ دهغه وخواته کی او ترڅو چی به هغه فارغه نه سو نوعلیه السلام به غوږ نه ایسته کوی.

(زادالمعاد ص۱۱۸ ج۱)

(۴) سنت: کله چی به رسول اللّٰه ﷺ یوڅوك رخصتوی نو دا دعا به ئې کول

اَسۡتَوۡدِعُ اللّٰهَ دِيۡنَكُمۡ وَاَمَانَتَكُمۡ وَخَوَاتِيۡمَ اَعۡمَالِكُمۡ ٥

(ترمذی ص۱۸۲ ج۲)

⑤ سنت: کله چې به رسول الله ﷺ یو دخوښۍ شی ولیدی نو به ئې فرمایل **اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ بِنِعْمَتِهٖ تَتِمُّ الصَّالِحَاتُ o**
او کله چې به ناوړه حال پیښ سو نو به ئې وفرمایل
**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰی کُلِّ حَالٍ.**
(المستدرك ص٦٧٨ ج ١، ابنِ ماجه ص٢٧٨)

⑥ سنت: کله چې به ئې یو څوك ولیدی نو ترمخه به رسول الله ﷺ سلام ورته کوی. (شمائل ترمذی صفحه١٢)

⑦ سنت: کله چې به ئې یوشی ته تر اړخ دخوا کتل نو پوره مخ به ئې په وراړولوسره ورته کتل، دمُتکبّرینو په رقم دسترګو ترکونجیانو به ئې نه ورته کتل. (خصائل شرح شمائل ص١٢)

⑧ سنت: نظر به ئې کښته ساتی، د ډیری حیا په خاطر به ئې په ډکو سترګو نه کتله. (خصائل ص١٢)

⑨ سنت: سختی به ئې نه کوله، نرمی به ئې خوښوله، علیه السلام ډیرنرم طبیعته حلیمُ الطَّبع(برداشت کونکی) او زړه سواندی وو.(مشکوٰۃ ص٥١٢ ج٢)

⑩ سنت: رسول الله ﷺ چې به دتګ په وخت کښې پښه پورته کول نو قدم بې دقوت څخه شخ وه او قدم به ئې داسی ایښووی چې لږ به دمخ پرخوا کښته سوپه تواضع سره به ئې قدم مخته په اخستلوسره تګ کاوه لکه دلوړی څخه چې

کښنتی ته تاکیدی. (خصائل ص۱۲، ۷۳)

(۱۱) سنت: په ټولو کی به ګډ اوسیدی (یعنی په شان جوړولو سره به نه اوسیدی) بلکه کله کله به ئې مزاح (خوش طبعی) هم کوله. (بهشتی زیور حصّه۸ صفحه۴)

(۱۲) سنت: که به یوغریب راغلی یا به سپین سری د رسول اللّٰه ﷺ سره خبره کول غوښته نو رسول اللّٰه ﷺ به دسړك پر یوه غاړه د اوریدو دپاره کښینستی. (بهشتی زیور حصّه ۸ ص۴)

(۱۳) سنت: په لمانځه کی چی به ئې دقرآن مجید تلاوت کوی نودسینې مبارکی څخه به ئې د دیګ د ایشیدو په رقم ږغ راتلی، دخدای دیری په خاطر به ئې داسی حال ؤو. (شمائل ص۱۸۸)

(۱۴) سنت: دکوروالاؤ ډیرخیال ئې ساتی چی چا ته دده علیه السلام څخه تکلیف ونه رسیږی ، پدې خاطرچی به دشپې دباندی وتی نو به په کراره ولاړسو، په کراره به ئې څپلکی په پښو کړې، په کراره به ئې دروازه خلاصه کړه، په کراره به دباندی ووتی همدارنګه کورته چی به راتلی نوبه په کراره راتلی چی بیدو کسانو ته تکلیف ونه رسیږی او دچا خوب خراب نسی.

(مشکوٰة صفحه ۲۸۰، بهشتی زیور حصّه ۸صفحه ۴)

(۱۵) سنت: کله چی به روان ؤو نو نظر به ئې کښته دمځکی وخواته ساتی، دخلګو سره چی به روان ؤو نو دټولو ترشا به

ؤو اوکه به څوك په مخه ورغلی نو دهٔولو ترمخه به سلام رسول الله ﷺ ورته کوی. (شمائل ترمذی صفحه۱۲)

(۱۶) سنت: دیو قوم عزت داره سړی وی نو دهغه عزت کول.(شمائل ص۲)

(۱۷) سنت: دخپل وخت څخه یوڅه وخت دالله تعالیٰ دعبادت دپاره، یوڅه دکوروالاؤ دحقوق د ادا کولو دپاره لکه دهغو سره خندا خبری او یوه حصه دخپل بدن د آرام دپاره راا یستل.

(شمائل ترمذی صفحه۱۹۸)

(۱۸) سنت: پر رسول الله ﷺ باندی درود شریف ویل.

(نشرالطیب صفحه۱۷۰)

(۱۹) سنت: د همسایه سره احسان کول، دمشرانو عزت کول او پر کشرانو باندی رحم کول.

(مشکوٰة جلد۲ صفحه ٤٢٤ صفحه٤٢٣)

(۲۰) سنت: که یو خپل بدسلوك وکی نو دهغه سره ښه سلوك کول. (مشکوٰة صفحه٥١٩)

(۲۱) سنت: کوم خلګ چی په دنیاوی لحاظ کمزوره دی دهغو خیال ساتل. (مشکوٰة ص٥١٩ ج۲)

(۲۲) سنت: راسته یا چپه اړخ ته بالښ ایښول.

(شمائل ترمذی مع خصائل نبوی صفحه٧٦، زادالمعادص ١٢٠ ج١)

(۲۳) سنت: دمايني زړه دخوشاله کيدو دپاره دهغي سره مزاح (خوش‌طبعی)

کول او دخندا خبری کول هم سنت دی.(خصائل شرح شمائل ص ۱۹۸)

(۲۴) **سنت:** دسهار د لمانځه وروسته تر اشراقه پوری رسول اللهﷺ په مسجد کی به چارزانو کښینستی همدارنګه په خپلو اصحابو کی به هم رسول اللهﷺ چارزانو کښینستی.

( خصائل شرح شمائل صفحه۷٦)

هو کشرانو ته دمشرانو په مخکی دوزانو (پرکونډو) کښینستل اَقۡرَبُ اِلَی التَّوَاضُعِ(تواضع ته نژدې) ليکل سوی دی.

(شامی جلدنمبر۱)

(۲۵) **سنت:** دخپل مسلمان ورور سره په خندا ليدل.

(ترمذی ج۲ص ۱۸)

(۲۶) **سنت:** پر سواری باندی دهغه مالك ته مخته دناستی دپاره ويل او دهغه بيله اجازې مخته نه کښينستل سنت دی.

(مشکوٰة ص ۳٤۰ ج۲)

**اَنۡتَ اَحَقُّ بِصَدۡرِ دَابَّتِکَ** الخ

☆ ☆ ☆

**تَمَّتۡ بِالۡخَيۡرِ**

**رَبَّنَاتَقَبَّلۡ مِنَّآ اِنَّکَ اَنۡتَ السَّمِيۡعُ**
**الۡعَلِيۡمُ وَتُبۡ عَلَيۡنَآاِنَّکَ اَنۡتَ التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ** ط